# شهامت

## برمايي مسلمانان !!

نهم کال لومړی ګڼه، پرلپسې۵۱ مه، شعبان ۱۴۳۶هق، جون ۲۰۱۵م

داسلامي امارت نوې سياسي او پوځي لاسته راوړنې...

د اسلامي امارت له خيرخواهی او تدبر مالا مال موقف...

عزم، د اسلامي امارت د پوځي اوسياسي بريا شانداره مظهر!

د ترکيې راتلونکی حکومت، ننګونې او احتمالات

د شهيد مولوي نسيم الله صديقي ژوند ته کتنه

ازماهی رحمت چګونه استقبال ميګرد

له انګريز نه دآزادۍ لپاره د شيخ الهند او مدني درې کاروانه...

د بغلان والي ملا محمد اسمعيل: عزم عملياتو په بغلان کې انقلاب راووست



# شهامت

## علمي، کلتوري او اسلامي مجله

نهم کال لومړی ګڼه، پرلپسې ۵۱ مه، شعبان ۱۴۳۶هق، جون ۲۰۱۵م

## لړلیک




**دامتیاز خاوند :**

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :**

ابو ظهیر

**کتنپلاوی :**

شاهد "حقاني" لطیف عزم
حسن "علوي" بلال "وحید"
نعیم "صافی" عابد مجاهد
قاري حبیب

**بیه :**

یوه ګڼه ۲۰ افغانۍ او ۳۰
کلدارې په پاکستان کې

**تخنیکي مسؤل :**

تخنیکي څانګه


**یادونه**

شهامت له سرمقالې پرته دنورو لیکنو مسؤلیت په غاړه نه اخلي.

ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان  بریښنالیک : Sham.shahamat@yahoo.com

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحیم

# داسلامي امارت نوې سياسي او پوځي لاسته راوړنې...

لـه هغـه ورځـې راهيسې چـې اسلامي امـارت پـه ټـول هېـواد کـې دصليبي اشـغال پـه وړانـدې دافغـان مـومن ولـس دازادۍ لپـاره د عـزم پسرلني عمليـات پيـل کـړي، لـه املـه يـې د هېـواد پـه لـر او بـر کـې پـر خـارجي اشـغالگرو ځواکونـو او دهغـوی پـه بـې ضـميره گوډاگيـانو دژونـد کـړۍ تنگـه او لويشت لويشت زمکه ورته سور تنور گرځېدلې.

پـه دې سره يـو واربيـا دافغـان ولـس دسترو ميړانـو او قهرمـانيو هغـه تـاريخ تکـرار او ژونـدی شـو، چـې هـر تيـري کـوونکي تـه يـې دخپـل ايمان او ازاد فطرت پـه ځـواک غـاښ مـاتوونکی ځـواب ورکـړی دی، او دلکونو يرغلگرو ککرۍ يې په خپلوقدمونو کې رغړولي دي.

رښتيا هـم چـې دعـزم عمليـاتو دغـه روحيـه پيـاوړې کـړه د امـارت دبـاتور و او زړورو مجاهـدينو وروسـتي تنـدريز بريدونه،پـه افغانسـتان کـې دتـاريخي فتوحـاتو اوبريـاوو پـراخ بهيـر رامنځتـه کـېدل ، پراخـې سـيمې او گنـې و لسـوالۍ دخـارجي اشـغالگرو او دمـزدور رژيـم لـه واک څخـه وتـل او دمجاهـدينو لاس تـه ورتلـل هغـه رانـه او څرگنـد واقعيتونـه دي چـې پخپلـه ددښـمن لوړرتبـه چـارواکي يې دتوجيـه نـه عـاجز او پـه ډېـره ستومانه روحيـه پـه واز کـومې پـرې اعـتراف لـري او داخبـره منـي چـې دهېـواد پـه مهمـو او سـتراتيژک اهميـت لرونکـو برخـو دطالبـانو لاسـته راوړنـې اوبريـاوې يـا پرمختگونـه له معنويته ډک دي.

دسيمي دچـارو دکتونکـو پـه انـد: دعـزم جهـادي عمليـاتو پـه تـرڅ کـې پـه ډېـره لـږه مـوده کـې دمجاهـدينو پـراخ فتوحـات اوبرياليتوبونـه او پـه مقابـل کـې يـې دامريکـا او گـوډاگي رژيـم دعسکرو

شکست او په شاه تګ ددې خبرې ښکارندويي کوي چې امريکا او ګوډاګي رژيم په ولس کې خپل اعتبار له لاسه ورکړی دی، او په مقابل کې يې مجاهدين دافغان ولس دپراخ ملاتړ څخه برخمن دي او اشغالګرو له منګلو څخه دګران هېواد دژغورلو په موخه له سرښندونکو او باتورو مجاهدينو سره ولاړدي، ولې که دولس مرسته او همکاري له مجاهدينو سره نه وای نو دهغوی لپاره دومره پراخ او دقيق عمليات تنظيمول اسان کارنه وو ،دا چې دولس دغه سهميه ددې ښکارندويي کوي چې دامريکايانو غولوونکي شعارونه افغانانو ته دمنلوندي او دولس بشپړ اکثريت دامريکايانو ارادو ته دشک په نظر ګوري.؟!

دڅېړونکو په نظر دمجاهدينو تازه برياوې او لاسته راوړنې دامريکا په مشرۍ ائتلاف لوري لپاره دخطر زنګ دی، که هغوی له افغانستانه دځواکونو په ويستلو ژر غور ونکړ، ممکن عسکر يې دولسيـ مقاومت دداسې څپې سره مخ شي چې له ويت نامه به هم ورته ځوروونکي زيانونه پيښ کړې

هو! دپوځي او جهادي ډګر ترڅنګ په سياسي او ديپلوماتيک ډګر کې هم اسلامي امارت لګيا دی ګام ، په ګام تاريخي او شانداري برياوې ترلاسه کوي، دپګواش له نړيوالې ناستې وروسته دناروې هېواد په پلازمينه (اوسلو) کې دوه ورځنې نړيوال کانفرانس ته داسلامي امارت دسياسي دفتر درئيس دعوتېدل جوتوي چې نړيواله کچه داسلامي امارت سياسي دريځ ته پذيرايې په برخه شوې او دنړۍ ځينې هېوادونه او خلک دې حقيقت ته رسيدلي چې اسلامي امارت دافغانستان دننه ترټولو مؤثر او ژوندی حقيقت دی، بايد دافغاني معضلې دحل په باب يې د نظرياتو او دلايلو درناوي وشي .

دسياسي کارپوهانو په نظر: داوسلو غونډې ته د اسلامي امارت د سياسي دفتر استازو بلل په سياسي او ديپلوماتيک ډګر کې بله لاسته راوړنه ده ، اوجوتوي چې دښمن دپوځي ډګر ترڅنګ په سياسي ميدان کې هم داخلاقي شکست سره مخ دی ،اونور ددې توان نلري چې دافغان مسلمان ولس د ازادۍ دارادې په وړاندې دشګوبندونه واچوي رازو ديته چې په ټوليزه توګه په پوځي او سياسي ډګر ونو کې داسلامي امارت تازه برياوې اولاسته راوړنې افغانانوته ډاډېښونکې او مورال ورکوونکې دې، چې ددوی دخاورې او دين دښمن په هر محاذ دناکامۍ او بدنامۍ سره مخ دی، که خدای جل جلاله کول هغه شيبې رالنډې دې چې افغان خاورې غليم دشوروي پشان په واز کومې خپلې تيروتنې او اشتبهات ومني اوپه ټول هېواد کې سوله او ارامې وزر وغوړوي.

وما ذلک علی الله بعزيز

عزم

# د اسلامي امارت د پوځي او سیاسي

# بریا شانداره مظهر

شاهد (غزنیوال)

یوه نیمه میاشت وړاندې اسلامي امارت په هیواد کې د میشتو یرغلګرو او د هغوی د ملاتړو پرخلاف پوځي عملیات اعلان کړل.

یاد عملیات په ډیر کم وخت کې هیواد شموله او په هرځای کې یې دښمن ته ملا ماتوونکي تلفات واړول.

په بدخشان او کندوزکې په زور اخیستو سره یې لړۍ ډیره په ګړندیتوب سره تر پلازمینې کابل او د هیواد مرکزي ، جنوب، جنوب لویدیځ او ختیځو ولایاتونو ته وغزیده، ډیرې سیمې فتح او په ډیرو هغو کې دښمن ته مرګوني ګوزارونه ورکړل.

د عزم د عملیاتو اساسي تمرکز په کابل کې د بهرنیو یرغلګرو د را پنډیدو په مرکزونو و چې د کلوله پشته او وزیر اکبر خان غونډې په خوندي سیمو کې یې په سرښندونکو بریدونو کې په لسګونه بهرني جاسوسان مړه اوژوبل کړل، د یادو عملیاتو طغیاني څپې ورځ تر بلې ګړندۍ کیږي، پراخیږي او بریالي کیږي.

د کابل د مزدور رژیم چارواکي کوښښ کوي چې د خارجي حامیانو د هوایي ملاتړ او د خپلو تبلیغاتو په وسیله په خپلو شکیدلو ځالوباندې د عزم پوځي بریدونو کم اغیزه وښیي ، خو په دې عملیاتو کې د مجاهدینو لاسته راوړنو او ښکاره بریاوود دښمن دا ټولې هڅې له ناکامي سره مخ کړې.

د عزم عملیاتو امتیازي خاصیت دادی چې د ولسي- خلکو د سر اومال تحفظ ته ورکې ډیره پاملرنه شوې او د الله په فضل تر اوسه د مجاهدینو د عملیاتو په ترڅ کې داسې پیښه نه ده رامنځته شوې چې قربانیان یې ولسي- وګړي وي. بل امتیازیې دادی چې هغه یواځې په پوځي جانب تر کیز نه لري ، بلکې له پوځي فعالیتونو سره یو ځای یې د دعوت او د دښمن له لیکو څخه د هغوی د افرادو راجلبولو پروګرام هم پر مخ بیول کیږي.

د عزم عملیاتو بله مشخصه داده چې تنفیذي تسلسل یې ډیر په له پوري دی ، اودې تکتیک یې د ښمن وارخطا کړی ؛ ځکه چې په یوه وخت کې هغوی په متعددو جبهو کې مصروف کړی.

د پوځي استحضاراتو ترڅنګ د عزم مطبوعاتي پوښښ ته هم ډیره توجه شوې ، د اسلامي امارت ویاندویان په ډیره چټکتیاسره هره پوځي بریا له رسنیو سره شریکوي ، د امارت اړوند رسنیز وسائل یې هر فعالیت په خپل وخت نشر او تحلیلوي اوسمعي او بصري ځانګه یې د هرې پیښې ژوندۍ صحني او انځورونو تر نړیوالو مطبوعاتو رسوي.

د عزم عملیاتو بریا په سیاسي ډګر کې هم د امارت دریځ پیاوړی کړی ، ښکاره بیلګه یې د پګواش په وروستۍ غونډې کې د اسلامي امارت منطقي موقف وه چې د غونډې د ټولو برخوالو لخوا وستایل شو.

په پوځي او سیاسي برخه کې د عزم موفقیت د حکومت مشر اشرف غني هم وارخطا کړی او هرځای په خپلو څرګندونو کې وایي چې د طالبانو د پوځي عملیاتو د ګړندي کیدلوموخه داده چې دولت مجبور کړي له

کمزوري دريځه له هغوي سره خبرې وکړي . نو موړي هرات ولايت ته په خپل وروستي سفرکي په شمال کي د مجاهدينو د پوځي تحرکاتو په زياتيدلو اعتراف وکړ.

له دغو ټولو ښکاره برياوو سربره ښايي د ښمن دا ادعا وکړي چي عزم عمليات کومهه د ياد ولو وړ بريا نه لري؛ ځکه د عملياتو له پيله نيږدې دوه مياشتي تيريږي خو طالبانو ونه کړای شول چي اقلا د ۳۴ ولايتونو له جملي څخه يو ولايت تر خپلي ولکي لاندې راولي .

مونږ ددښمن د دې ادعا په ځواب کي وايو چي لومړی خو ستاسي د لوړ پوړو چارواکو په اعتراف دهيواد اکثريت ولايتونه د سقوط تر تهديد لاندې دي، د ولايتونو په داخل کي دهرولايت والي اړونده ولسواليو ته د ځمکي له لارې زړه نشي۔ ښه کولای ، په ۳۴ ولايتونو کي د رژيم اداري او امنيتي داوئر يواځې دولايتونو تر مرکز پوري محصور دي.

په ولسواليو کي ولسوال او اړونده پرسونل يي ټول د ولسوالۍ په چارديواري کي محاصره دي ، ايا دغه ټول ځمکني ملموس واقعيتونه بياهم دمجاهدينو لپاره د يادولو وړ بريا نه بلل کيږي؟

له بله پلوه د عزم عملياتو د پوځي طراحانو په باور دغه عملياتي پروګرام څو مراحل لري چي هره مرحله يې په خپل وخت پلي کيږي.

لومړنۍ مرحله يي يواځې د خرپ او ترپ عملياتو تنفيذي مرحله ده ، په دې مرحله کي هغوی غواړي يواځې د دښمن پوځي وړتيا ځانته معلومه کړي.

په دې مرحله کي مجاهدين غواړي د رژيم په داخل کي د خپلو نفوذي کسانو په وسيله داسي عمليات ترسره کړي چي د هغوي ترمنځ يو پربل بي باوري رامنځته شي . د دغو تکتيکي عملياتو يوه بيلګه د روزګان د پخواني امنيه قومندان جنرال مطيع الله خان تکتيکي وژل دي چي له امله يي د رژيم د ټولو پوځي ، امنيتي اوکشفي ارګانونو ترمنځ يو پربل بي اعتمادي رامنځته شوه.

هغه ښکاره اغيز چي د عزم عملياتو د دښمن پرليکو لرلی هغه داچي د دښمن افراد يو پر بل سخت بي باوره شوي، اود غه بي اعتمادي په تدريج سره د هغوی ترمنځ په پوځي فعاليتونو کي د نه همغږي لامل ګرځي .

په ډير لږ وخت کي د عزم عملياتو د لوي الله په نصرت او دخپل مجاهد ولس په ملاتړ ښې برياوې لرلي ، دغو برياوو عملا د رژيم پوځي او امنيتي وړتياوې ننګولي. د هغوي په منځ کي يې د بي باورې کچه زياته کړې او په هرځای کي خپل افراد له مجاهدينو سره په لاس لرلو تورنوي ...

يوه نيمه اونۍ وړاندې د امنيتي چارواکو لخوا په ننګرهار ولايت کي د مشرانو جرګي پرمشرفضل هادي مسلميار او د هغه پر ورور له مجاهدينو سره د لاس لرلو الزام او د ولسي۔ جرګي د مرستيال ظاهر قدير او مسلميار ترمنځ داخلي اختلافات هم د دوي د خپل منځي بي باوري يوه بيلګه ده.

داهرڅه په پوځي ساحه کي دعزم عملياتو دبرياليتوب او پرمختګ اغيزې دي.

د اچي روان کال د مجاهدينو او دښمن لپاره يو برخلک ټاکونکی کال دی ، مجاهدين هم په ډير دقت او غور سره عزم عمليات په مرحله واره بڼه پرمخ بيايي .

لومړنۍ مرحلي ته په کتو سره هغه له پوځي ، سياسي او مطبوعاتي اړخه ښه بريالي پر مخ روان او د دښمن دملاماتوونکو تلفاتو په پرتله د مجاهدينو ځاني تلفات په نشت حساب دي.

# برمايي مسلمانان !!

ت - حسن

له درې اونيو راهيسې د برما هيواد د آراکان ولايت چې اکثره وګړي يې مسلمانان دي، تر سختو او وحشتناکو بريدونو لاندې دی.

دا بريدونه هغه مهال دمسلمانانو پرضد په يوې هر اړخيزې جګړې واوښتل، کله چې څو ورځې وړاندې دمسلمانانو يوه ډله دعمرې له اداکولو وروسته بيرته برما ته را ستنه شوه او په لاره کې د بوداياڼو له لوري په ډېره وحشيانه توګه ووژل شول، ددې لپاره چې څه موده وړاندې يوه بودايي جينۍ په مرموز ډول وژل شوې وه او پړه يې بودايي مذهب پالو پر مسلمانانو اچوله.

اراکان ولايت چې دبرما په غرب کې واقع دی اوسيدونکي يې مسلمانان دي او د بنګله دېش سره په سرحد کې موقعيت لري چې له کلونو کلونو راهيسې دامسلمانان د بوداياڼو له خوا چې دحکومت هر اړخيزه مرسته ورسره موجوده ده ځپل کېږي.

له څه مودې راهيسې دبودايي ځوانانو ډلې چې په تورو او نورو جګړيزو وسلو سمبال دي د حکومتي پوليسو تر سترګو لاندې د اراکان په لارو او کوڅو کې ګرځي او هر مسلمان چې پر مخ ورځي هغه وژني او تر اوسه يې دمسلمانانو په سلګونو کورونه سوزولي دي، په ځانګړې توګه د مونګاناو په سيمه کې چې داراکان په شمال کې واقع ده دبوداياڼو تر سختو ګذارونو لاندې ده.

سره له دې چې د برما په پلازمينه رنګون کې حکومتي چارواکو په اراکان کې بيړنۍ حالت اعلان کړی او د امنيتي ځواکونو په سلګونو کسان يې په دې سيمه کې ګمارلي دي، ولې بياهم هره ورځ په لسګونو مسلمانان وژل کېږي، په همدې سبب ملګرو ملتونو خپل کار کوونکي له دې سيمې ايستلي دي او سيمه د قاتلانو په ولکه کې پرېښودل شوې ده.

بلخوا حکومتي رسمي رسنۍ وايي چې تر اوسه په دې سيمه کې ۷ کسه وژل شوي او ۱۷ زخميان دي، او له دې داسې څرګندېږي چې حکومت يوازې هغه بودا يان چې دمسلمانانو له لوري په دفاعي حالت کې وژل شوي هغوی حسابوي او دمسلمانانو چې هره ورځ په لسګونو کسان وژل کيږي هغو ته هيڅ پام نه کوي.

دملګرو ملتونو دوينا له مخې برمايي مسلمانان دنړۍ پرمخ له ټولو نه زيات زپل شوي اقليتونه دي، چې دحکومت تر سيوري لاندې ددې اقليت سره بې دريغه زياتی کيږي.

په کال ۱۹۷۸ ميلادي کې له۲۰۰ زرو زيات برمايي مسلمانان دبنګله ديش هيواد مهاجر شول ځکه چې په هغو ورځو کې هم دمسلمان وژلو سلسله په اراکان کې په ډير شدت سره روانه وه، څلور کاله وروسته له دې هجرته نه په کال ۱۹۸۲ ميلادي کې دبرما حکومت يو قانون پلی کړ چې دهغه له مخې دبرمايي مسلمانانو نه دبرما تابعيت (نشنليټي) واخيستل شوه، او په دې توګه هغوی په خپل هيواد کې دغير قانوني مهاجرو په توګه ژوند پيل کړ، په کال ۱۹۹۱ او ۱۹۹۲ کې يوځل بيا مسلمانان له عامه وژنو سره مخ شول او دا ځل دحکومتي عسکرو په لاس وژل کيدل، او هدف يې داؤ ترڅو مسلمانان په هر اړخيزه توګه له برما څخه ووځي چې يوځل بيا

په همدې کلونو کې په زرګونو برمايي مسلمانان بنګله دیش ته مهاجر شول.

او هغه کسان چې تر اوسه يې هم برما نه پرې ايښې او په خپل پلرني ټاټوبي کې پراته دي، درنګ رنګ ظلمونو سره مخ دي چې انسان ضمير يې له فکر کولو څخه هم عاجز دی، په زندانونو کې غورزول کيږي، اجباري کارونه ترې اخيستل کيږي، زمکې او نوره عامه شتمني يې غصب کيږي، هغوی ته واده کولو اجازه نه شته او له يوځای نه که بل ځای ته سفر کوي نو بايد له حکومتي چارواکو رسمي موافقه ترلاسه کړي.

نن ورځ له يو ميليون نه زيات برمايي مسلمانان په نورو هيوادونو کې ژوند کوي او په برما کې اوس تقريبا ۷ لکه او پنځوس زره مسلمانان پاتې دي چې هغوی هم په دې ورځو کې يوځل بيا له عامه وژنې سره مخ دي.

دا عامه وژنه چې نن دبرما په اراکان ولايت کې روانه ده غربي ديپلوماتان او دبشري حقوقو دعوا لرونکي هم يا چپ خوله دي او ياهم دحکومت او بودايانو په پلوي کې دمسلمانانو پرضد ډنډوره کوي.

په فيسبوک، ټويټر او نورو دټولنيزو اړيکو پاڼو کې غټ غټ شعارونه ليکل کيږي، مسلمانان ووژنئ، دوی ددې هيواد خلک نه دي، تر دې چې په فيسبوک ځنې کسانو جوائز هم ايښې دي چې که چا يو مسلمان وواژه نو دومره ډالر به ورکړل شي.

دعيني شاهدانو په وينا هغه ډلې چې مسلمانان وژني د حکومتي عسکرو په مرسته په سيمه کې حرکت کوي، تردې چې په اکثره پيښو کې امنيتي چارواکي په خپله هم دمسلمانانو په وژلو کې برخه اخلي.

نن دبرما مظلوم مسلمانان ددوو تورو ترمينځ ژوند کوي، له يو لوري په خپل پلرني هيواد کې په ډيره دردونکې توګه وژل کيږي او بلخوا که کوم يو وغواړي چې له دې قاتلانو نه تيښته وکړي، نو دبنګله ديش سرحدي پوليس ورته په مورچل کې ناست وي او هغوی يې وژني او ياېې بيرته د اراکان دولايت دوزخ ته ور لږه کړي

# غزل

استاد فضل ولي ناګار

ما اذان انځور په شور و شرنګ د زنځيرونو کړ
زوړ ختيځ مې بيا ځلمی په مستو تکبيرونو کړ

پرخه مې کوثر کړ د وينو د ګل ټنډې ته
وړي وړمه وړمه پېغام نسيم ولاړ دی منډې ته

سپين کمربند وتاړه سبا راغی تيارو پسې
ځي جوپې جوپې ستوري د لمر په ښاپېرو پسې

شپه په سپيدو وچاوده ځانمرګې شان شپبه راغله
ته ګريوان څيرې د ناقوس د پير توبه راغله

بيا زموږ رندانو الستي جامونه پورته کړه
بيا يې په شپيلۍ اسرافيلي غږونه پورته کړه

ډک په شومه دم چې وزرونو د جبريل وکړ
ډکه شوه فضا له جلال سور اور رودنيل وکړ

څومره کلک ګوزار په ابرهه بيا ابابيل وکړ
ټول بوتان نسکور دي د توحيد اواز خليل وکړ

بيا ترې اننګو د زمانې ته رنګيني راغله
بيا د الاالله په زمزمو باندې ځواني راغله




# د بغلان والي ملا محمد اسماعیل

# عزم عملیاتو په بغلان کې انقلاب راووست

مرکه کوونکی ابوعابد

درنو لوستونکو !

بغلان ولایت دافغانستان په شمالي حوزه کې موقعیت لري چې شمال ته یې کندز، ختیځ ته یې تخار او پنجشیر، جنوب ته یې پروان او لویدیځ ته یې بامیان او سمنگان ولایتونه موقعیت لري ، دبغلان ولایت مساحت ۲۱۱۱۲ مربع کیلومتره او نفوس یې دوروستیو تقریبي احصایو له مخې نږدې اوه نیم لکه تنه ښودل شوی دی، دبغلان ولایت مرکز د پلخمري ښار دی ، او ولسوالۍ یې د اندراب، دوشي، خنجان ، بورکه، جلگه، دهنه غوري ، خوست وفرنگ ، تاله وبرفک ، ډنډغوري، نهرین، بغلان جدید،گذرگاه نور او ده صلاح په نومونو یادیږي .

بغلان چې دموقعیت په لحاظ دافغانستان د مهمو ولایاتو له جملې دی په داسې ډول چې د افغانستان ټول شمالي ولایت د بغلان له لارې دافغانستان له مرکز سره وصل کیږي،په دې وروستیو کې د یوه ستر تحول شاهد و، دغه ولایت چې پخوا یرغلگرو او دهغوی اجیرو ملیشو ، اربکیانو او کرایي ټوپکوالو په کې فعال برلاس حضور درلود دسږ کال د عزم عملیاتو له پیل سره داسلامي امارت مجاهدینو په کې په سترو عملیاتو لاس پورې کړ چې په نتیجه کې یې ددې ولایت زیاتره سیمې د فاسدو ملیشو له شتون څخه تصفیه او دمجاهدینو په واک کې راغلې، په بغلان کې د همدې وروستي ستر تحول په اړه مو ددې ولایت د جهادي چارو له مسؤل / والي ملامحمد اسمعیل سره مرکه کړې چې ستاسو توجه ورته غواړو.

**پوښتنه:** مولوي صاحب تاسو ته سلامونه او احترامات وړاندې کوو که له هرڅه وړاندې زموږ لوستونکو ته ځان ورمعرفي کړئ؟

**ځواب :** الحمد لله رب العلمین والصلوة والسلام علی سیدنا محمد و علی آله و اصحابه اجمعین و بعد :

زما نوم ملا محمد اسمعیل دی د بلخ ولایت د چمتال ولسوالۍ اوسیدونکی یم او فی الحال د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د بغلان ولایت د جهادي چارو د مسؤل په حیث جهادي دنده اجراء کوم .

**پوښتنه:** د بغلان ولایت د جاري وضعیت په اړه که معلومات راکړئ چې فی الحال په دې ولایت کې په سیمو د حاکمیت تصویر څنگه دی؟

**ځواب:** بغلان ولایت ۱۵ اداري واحدونه لري ، چې په دې ټولو اداري واحدونو یعنې مرکز او ولسوالیو کې د اسلامي امارت مجاهدین حضور او نظامي تشکیلات لري، خو د ولسوالیو ترمنځ فرق شته چې په ځینو کې نسبت نورو ته د مجاهدین شتون پراخ او قوي دی .

**مثلا:** په مرکزي بغلان کې مجاهدین له دوو ښارگوټو شهرکهنه او شهر جدید پرته په ټولو ساحاتو بشپړ کنترول لري چې د ولسوالي تقریبا اتیا فیصده ساحه کیږي، په ډنډ غوري کې هم مجاهدین په اتیا فیصده ساحه کنترول لري، په تاله و برفک ولسوالي کې چې له بامیانو سره نښتې سیمه ده مجاهدین په ۹۰ فیصده ساحه کنترول لري ځکه یوازې د ولسوالۍ مرکز د دښمن په لاس کې دی، په دهنه غوري او بورکه ولسوالیو کې هم مجاهدین تر نیمایي زیاتې ساحې په کنترول کې لري، له دې پرته دوشي او مرکز پلخمري کې هم مجاهدین ځواکمن حضور لري او ډیرې سیمې یې تر واک لاندې دي، باید یادونه وکړم چې د دهنه غوري او ډنډ غوري له وروستیو فتوحاتو وروسته اوس مجاهدین د بغلان د مرکز دروازو ته رسیدلي په داسې شکل چې د مجاهدین جنگي خط د پلخمري ښار په ۴ کیلومترې کې موقعیت لري او که وغواړي ولایتي مرکز تهدیدولای شي .

له یادو سیمو پرته په اندراب، خنجان، نهرین، جلګه، خوست و فرنګ او نورو ټولو ساحو کې هم مجاهدین حضور لري او په دښمن عملیات ترسره کوي، په ټوله کې مجاهدین په بغلان کې په ټولو مهمو سیمو او مواصلاتي نقاطو باندې کنټرول لري او د ولایت ډیری سیمې یې په لاس کې دي.

**پوښتنه:** مولوي صاحب لکه تاسو ته چې بهتره معلومه ده، په بغلان کې په وروستیو کلونو کې د جهادی عملیات وضعیت کمزوری و، مګر سږ کال ناڅاپه یو تحول راغی او مجاهدینو ډیرې سیمې ونیولې ددغه تحول په جزیاتو که رڼا واچوئ او معلومات راسره شریک کړئ؟

ځواب: بلې، لکه تاسو چې وویل دا یو واقعیت دی چې سږکال خصوصا د عزم عملیاتو له پیل سره په بغلان کې یو بې ساری انقلاب راغی او وضعیت په ناڅاپه توګه په بل مخ واوښت هغه داچې پخوا په دې ولایت کې د یرغلګرو او د هغوی د ملیشو ډیر واک او قدرت و او مجاهدین له ستونزو سره مخامخ و، مګر سږ کال الله الحمد ډیرې سیمې له دښمن څخه تصفیه شوې او دښمن له ډیر بدحالت سره مخامخ شو.

ددې تحول په اړه باید ووایم چې د عزم عملیاتو له پیل سره د کندز او بدخشان د فتحو د بهیر سره هم مهال مجاهدینو په بغلان کې هم په لویو تهاجمونو پیل وکړ چې په نتیجه کې یې په مرکزي بغلان، ډنډ غوري، دهنه غوري، دوشي او بورکې ولسوالیو کې ډیرې سیمې له دښمن څخه ونیول شوې.

په مرکزي بغلان کې تر ۳۰ پورې لویې سیمې لکه ځدراڼ، نورزي، سردار خیل، پاوکم، داود کلی، نواباد، همت خیل، چغان تیپه، انارخیل، ګرداب، طاهریان، شاهي خیل، صافیان، متهخیل، علاءالدین، خدایدادخیل، پشه یان، وکیل نظام کلی، خوستیان، او داسې نورې لویې منطقې له دښمن څخه ونیول شوې په دې ټولو سیمو کې پخوا ددښمن د اربکیانو، نظم عامه او پولیسو لسګونه پوستې وې دغه راز په دې سیمو کې ددښمن ۴ غټ بیسونه هم وو چې ټول دالله تعالی په نصرت فتحه شول او سیمې د مجاهدین په ولکه کې راغلې.

د مرکزي بغلان په جګړو کې چې شاوخوا یوه میاشت یې دوام وکړ، ددښمن ۹۳ تنه عسکر، اربکیان او پوځیان وژل شوي او ۱۱۰ تنه نور ټپیان شوي دي، دغه راز ددښمن ۱۵ ټانګونه او ۶ رینجر موټر هم تخریب شوي دي، په دې جګړو کې مجاهدینو له دښمن څخه ډیرې وسلې او مهمات هم غنیمت کړي دي.

د مرکزي بغلان غوندې بله سیمه چې د ستر تحول شاهده وه، د ډنډغوري سیمه ده، ډنډ غوري د بغلان مرکز پلخمري سره پیوسته پرته ده، په دې ولسوالۍ کې هم مجاهدینو اکثره پراخې سیمې لکه ګورګن، ګوډان، نیازالله کلی، غنچه پل، قلعه خواجه، اسلام اباد، لوګریان، مهاجرین، سیزو کلی، ناقلو کلی، انارخیل، تاجکان، سپیدخان کلی او داسې نورې سیمې د اربکیانو له وجود څخه تصفیه کړې او ددوی ګڼې پوستې یې له منځه وړې دي، په ډنډ غوري کې ددښمن ۳ لوی بیسونه/ پوځي مرکزونه هم مجاهدینو فتحه کړي دي، چې د ۲ رینجر موترو په شمول یې ډیرې وسلې او مهمات هم په کې غنیمت کړي دي، په دې ولسوالۍ کې ددښمن ۳۵ تنه اربکیان او عسکر قتل شوي او ۲۷ نور ټپیان شوي دي.

په دهنه غوري کې هم مجاهدین وتوانیدل چې د اقسای او منګلو په سیمو کې ددښمن دوه ستر بیسونه فتحه کړي دغه راز له ګڼو سیمو اربکیان تیښتې ته اړ کړي په همدې ډول په بورکه او دوشي کې هم ډیرې سیمې ددښمن له شتون څخه تصفیه شوي دي.

د بغلان وروستیو تحولاتو او جهادي پرمختګونو دښمن سخت وارخطا کړی دی ځکه ددې ولایت د کنټرول لپاره ددوی هغه ټول پروګرامونه په اوبو لاهو شوي چې د اربکی سازي د پروژو غوندې یې له مختلفو لارو هڅه کوله چې د جهادي خوځښت په وړاندې موانع ایجاد کړي.

**پوښتنه:** ستاسو په نظر په بغلان ولایت کې د وروستي تحول او جهادي فتوحاتو اهمیت په څه کې دی؟ دې حملو ولې دښمن دومره وارخطا کړ چې په یوه وخت د شاهین قول اردو ځواکونه او حتی له کابل څخه د وزارت داخلې خاص قطعه بغلان ته ولیږي تر څو مجاهدین له نیول شویو سیمو په شا کړي چې د همدې لپاره یې ډیره هڅه وکړه خو کومه نتیجه یې ترلاسه نه کړه، ستاسو په خیال دښمن ولې د بغلان له تحولاتو سره وارخطا شو؟

**ځواب:** تاسو ته بهتره معلومه ده چې د افغانستان شمالي او شمال ختیځ ولایات د هندوکش د غرونو یا سالنګ په توسط له مرکز

څخه یوه پرې شوې سیمه ده، چې دې ولایاتو ته له مرکز څخه یوازینۍ لاره د سالنګ د تونل لاره ده، دغه لاره په بغلان ورغلې او د بغلان په توسط له بدخشان، تخار، کندز، همداراز له سمنګان، بلخ، او جوزجان سره وصل کیږي.

په بغلان کې د وروستیو فتوحاتو په لړ کې په دې لاره په دوو ځایونو کې د مجاهدینو سلطه راغله، د بدخشان او کندز په خوا غځېدلې سرک د مرکزي بغلان په سیمه کې مجاهدینو ونیو او د بلخ په خوا غځېدلې لار چې د ډنډ غوري له منځه تیره شوې هم د مجاهدینو په تصرف کې راغله، دې پرمختیا که له یوې خوا په بدخشان او کندز کې ددښمن د قواوو په مورال خورا بد اثر وکړ او ددښمن پلان شوي عملیات یې له خنډ سره مخامخ کړل له بلې خوا چې دحیرتان بندر لخوا د یرغلګرو کوم اکمالات کیږي هغه یې هم له خنډ سره مخامخ کړل.

اوس چې مجاهدین کولای شي هرکله چې وغواړي دغې لارې په دښمن قطعه کړي، ددښمن قواوې او کتارونه راوګرځوي، ددې پرمختیا له امله دښمن ډیر وارخطا شوی دی او هڅه کوي په دغو لارو بیرته خپل تصرف راولي او د ځان لپاره یې امن کړي، دهمدې لپاره یې په وروستیو اونیو کې په بغلان کې لوی عملیات هم په کار واچول خو شو ورځې وړاندې یې پرته له کومې بریا څخه پای ته رسیدلی اعلان کړل او خپلې ډیرې قواوې یې بیرته له سیمې وایستلې، ددښمن ددې ناکامو ځوابي عملیاتو په لړ کې یوه د پام وړ خبره ددښمن د تبلیغاتي چینلونو دروغجنې ادعاګانې وې مثلا دوی یوځل اعلان وکړ چې په ۱۳۱ طالبان مو شهیدان کړي دي د عملیاتو په وروستۍ ورځ یې بیا اعلان وکړ چې ۷۰ کسه طالبان مو شهیدان کړي او ۵۰ مو زخمیان کړي دي مګر حقیقت دادی چې د بغلان په وروستي یوه میاشتني جنګ کې زموږ پنځه تنه مجاهدین شهیدان شوي او ۱۵ تر ۲۰ ټپیان شوي دي چې هغه هم اکثره اوس بیرته جوړ شوي دي.

**پوښتنه:** محترم مولوي صاحب ستاسو په باور په بغلان کې د وروستیو تحولاتو او سترو فتحو لامل څه و؟

**ځواب:** په بغلان کې ددې تحول لومړنی او اساسي لامل د الله تعالی نصرت و له مجاهدینو سره، الله تعالی د مجاهدینو په زړونو کې لوی جرأت او همت کیښود، ولسي خلک له مجاهدینو سره ملګري شول او په الله په توکل سره یې په دښمن عملیات وکړل او دښمن ته یې سخت شکست ورکړ.

په دې کې شک نشته چې کله د الله تعالی نصرت راشي بیا هیڅ دښمن د ټینګې نه وي، د بغلان مجاهدین وایي چې دلته د زمان خیلو په سیمه کې چې ددښمن ډیر قوي بیس و په تیرو اوو اتو کلونو کې به تر ځلوېښت زیات مجاهدین وړاندې شهیدان شوي وي مګر فتحه نه شو مګر دا ځل الله تعالی ددښمن په زړه کې رعب خپور کړ او ډیر په اسانۍ مجاهدینو ونیو.

د بغلان په وروستیو عملیاتو کې عام اولس له مجاهدینو سره ډیره پراخه همکاري درلوده او په ډیر اخلاص ورسره ولاړ و، حتی اولس له دښمن څخه دومره رنځیدلی و چې ددښمن د بیسو دفاعي خنډونه یې په بیلچو او کولنګونو ونړول او په جګړه کې یې هم له مجاهدینو سره هراړخیزه همکاري وکړه، نو مجاهدین که په هر سیمه کې غواړي فتوحات ترلاسه کړي، د الله تعالی د نصرت خواست دي وکړي ځانونه دې د الهي نصرت مستحق وګرځوی او د عام اولس د زړه ساتلو او راخپلولو لپاره دې ټوله هڅه په کار واچوي کله چې اولس له زړه څخه له مجاهدینو سره ملګری وي بیا زما یقین دی چې هیڅ دښمن به هم زموږ په وړاندې مقاومت ونه کړای شي.

**پوښتنه:** په پای کې که د بغلان ولایت اوسیدونکو ته یا عام اولس ته څه پیغام لرئ را سره شریک یې کړئ؟

**ځواب:** زه په بغلان کې د اسلامي امارت د مسؤل په حیث د بغلان ولایت ټولو اوسیدونکو ته داډ ورکوم چې مجاهدین ددوی خپل ورونه او زامن دي، دمجاهدینو په اړه دې ددښمن تبلیغاتو ته غوږ نه نیسي او نه دې له مجاهدینو څخه ویره احساسوي.

مجاهدین د هیچا په خلاف د انتقام جویانه عمل نیت نلري، مجاهدین که کومې سیمې تصرف کوي د هیچا په شخصي ملکیتونو، سر، مال او عزت به تعرض ونه کړي بلکې حفاظت به یې وکړي، زموږ ولسي خلک که د هرې ژبې او قوم څخه دي، باید په مجاهدینو اعتماد ولري مجاهدین پرته له تعصب څخه ټول هیوادوال خپل ورونه بولي او دهغوی څخه دفاع او د هغوی خدمت خپل ویاړ بولي. پای

# د تراويح لمونځ

دمولوي امان الله " حسن " ژباړه

الحمدلله وكفى، وسلام على عباده الذين اصطفى، اما بعد:

اهل سنت او جماعت ورونو!

د روژې مبارکه میاشت د انسان د روح لپاره پسرلی دی، د دې میاشتې د عبادت له ځانګړتیاو څخه د ورځې روژه او د شپې قیام (تراویح) دی، چې لوی اهمیت لري. په حدیث شریف کې پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: «إن الله تبارک وتعالی فرض صیام رمضان و سننت لکم قیامه».(ژباړه: الله پاک د روژې مبارکه میاشت پر تاسو فرض کړې، او په هغو شپو کې قیام (تراویح) تاسو لپاره سنت ګرځول شوی دی[1]. ددغې میاشتې له برکتونو یو دا دی، چې د یو نفل ثواب په کې د فرض هومره ثواب او د یو فرض ثواب په کې د(۷۰) فرضو له ثواب سره برابر دی، [2] نو ځکه به اولیاء کرامو د دغې میاشتې هره لحظه غنیمت ګڼله او یوه شیبه یې هم نه ضا یع کوله، په دې فکر چې بیا به دا زمونږ نصیب شي که نه. رسول اکرم صلی الله علیه وسلم به په دې میاشت کې ډېرزیات عبادت کاوه. حضرت عایشه صدیقه رضي الله عنها فرمایي: «کان رسول الله صلی الله علیه وسلم إذا دخل شهر رمضان، شد مئزره، ثم لم یأت فراشه حتی ینسلخ». ژباړه: (کله به چې د روژې میاشت داخله شوه، پیغمبر صلی الله علیه وسلم به خپله مبارکه ملا تړله اوخپل بسترته به نه راته، تر دې پورې چې مبارکه میاشت به ختمه شوه).[3] د روژې اخرو لس ورځو کې به حضور صلی الله علیه وسلم د عبادت ډېرکوشش کاوه، د دې په اړه حضرت عایشه رضي الله عنها فرمایي: «کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یجتهد في العشر الأواخر، ما لا یجتهد في غیره». ژباړه: (رسول اکرم صلی الله علیه وسلم به په اخري لس ورځو کې د عبادت ډېرزیات کوشش کاوه، چې په نورو ورځو کې به یې هومره کوښښ نه کاوه).[4] دغه مبارکه میاشت کې به حضور صلی الله علیه وسلم خپل امت عبادت ته ډېر هڅاوه، لکه چې حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایي: «عن ابي هریرة رضي الله عنه أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: من قام رمضان إیمانا واحتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه». ژباړه: (پیغمبر صلی الله علیه وسلم ویلي: هر څوک چې د ایمان په حالت او د ثواب په نیت د تراویح لمونځ اداکړي، الله جل جلاله یې تېرګناهونه ورته ښښي).[5]

دغه حدیث شریف نه معلومه شوه، چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم خپله په روژه مبارکه کې ډېر عبادت کاوه، او امت به یې هم په دغه مبارکه میاشت کې ډېر عبادت ته هڅاوه، هر سړی باید کوښښ وکړي چې په دغه مبارکه میاشت کې ډېر عبادت وکړي.

## تراویح

پیغمبر صلی الله علیه وسلم ۲۰ رکعته دتراویح لمونځ کړی دی، له حضور پاک وروسته عمر رضي الله عنه، عثمان رضي الله

---

۱ سنن النسائي ۱۵۸/۴حدیث ۲۲۱۰:سنن ابن ماجه ۴۲۱/۱حدیث ۱۳۲۸:مصنف ابن ابی شیبة ۱۶۵/۲حدیث ۷۷۰۵

۲ شعب الایمان للبیهقي: ۲۳۳/۵حدیث ۳۳۳۶: مشکوة المصابیح ۶۱۲/۱

۳ شعب الایمان للبیهقي:۲۳۴/۵ حدیث ۳۳۵۲فضلئل شهررمضان

٤ صحیح مسلم:۸۳۲/۲حدیث ۱۱۷۵کتاب الاعتکاف

٥ صحیح البخاري ۱٦/۱حدیث ۳۷کتاب الایمان: صحیح مسلم ۵۲۳/۱حدیث ۷۵۹کتاب صلاة المسافرین

عنه، علي رضي الله عنه، ټولو صحابه کرامو، تابعینو، مجتهدینو امامانو، مشایخو، اولیاء کرامو رحمهم الله اونورو··· پردغه عمل کړی دی، ټولو اسلامي ملکونو له ۱۴مې پېړۍ نه تر اوسه پر دې عمل کړی دی او ټول اسلامي امت په دغه اجماع او اتفاق لري، تفصیلات به يې وروسته راشي.

## "تراویح" کلمه

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله لیکي: «والتراویح جمع ترویحة، وهي المرة الواحدة من الراحة کتسلمیة من السلام». ژباړه: (تراویح د ترویحة کلمې جمع ده، ترویحة یو ځل استراحت ته وایي، لکه تسلیمة چې یو ځل سلام کولو ته وایي[6].

## د تراویح د نومونې لامل

ترویحة هغې ناستې ته وایي چې په هغې کې لږ ه دمه وي، له څلور رکعت تراویح نه وروسته لږه دمه وي، نوځکه څلور رکعته تراویح ته ترویحه وایي، دتراویح په لمانځه کې پینځه ترویحې دي، نو همدا لامل شو چې پنځه واړو ترویحو ته تراویح وایي.

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله لیکي: «سمیت الصلاة في الجماعة في لیالي رمضان التراویح لأنهم أول ما اجتمعوا علیها کانوا یستر یحون بین کل تسلیمتین. ژباړه: (هغه لمونځونه چې د روژې مبارکې په شپوکې په جماعت سره کېږي، هغه ته تراو یح وایي، ځکه صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې اتفاق کړی و، چې څلور رکعت تراویح نه وروسته به يې دمه کوله) [7].

تراویح سنت مؤکد دي

پیغمبر صلی الله علیه وسلم تراویح لمونځ سنت ګڼلی، لکه چې د دې بحث په اول کې تېرشو، دپیغمبر صلی الله علیه وسلم له وفات وروسته، خلفاء راشدینو اوټول صحابه کرامو په تراویحو همېشه والی کړی دی، چې دا د تراویحو د لمانځه د سنت مؤکدیت ښکارندویي کوي. حضرت عرباض بن ساریة رضي الله عنه روایت کوي، چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم به مسلمانانو ته په خطاب کې ویل: «فعلیکم بسنتي وسنة الخلفاء المهدیین الراشدین، تمسکوا بها، وعضوا علیها بالنواجذ». ژباړه: (تاسو زما او زماد راشده خلیفه ګانو سنت پر ځان لازم کړئ او منګولې پرې ولګوئ).[8]

په دې حدیث شریف کې پیغمبر صلی الله علیه وسلم د «علیکم» او د «عضوا علیها بالنواجذ»، په ذکرکولو سره لکه څنګه چې يې په خپلو سنتو د عمل کولو تاکید کړی دی، همدا راز يې د راشده خلیفه ګانو پر سنتو د تاکید حکم کړی دی، چې دا په خپله د تراویحو د سنت مؤکد والي دلیل دی.

## د تراویح لمونځ حضور صلی الله علیه وسلم درې شپې په جماعت سره ادا کړی دی

په جماعت سره د تراویح لمونځ یواځې درې شپې له پیغمبرصلی الله علیه وسلم څخه ثابت شوی دی. په احادیثو مبارکو کې دا خبره په ډاګه شوې، چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته د روژې مبارکې میاشتې له سر نه تر پایه د تراویح لمونځ نه دی ورکړی. حضرت ابوذر رضي الله عنه روایت کړی، عن ابي ذر قال: صمنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم رمضان، فلم یقم بنا شیئا من الشهر حتی بقي سبع، فقام بنا حتی ذهب ثلث الیل، فلما کانت السادسة لم یقم بنا، فلما کانت الخامسة قام بنا حتی ذهب شطرالیل، فقلت: یارسول الله لو نفلتنا قیام هذه اللیلة، قال: فقال «إن الرجل إذا صلی مع الإمام حتی ینصرف حسب له قیام لیلة»، قال: فلما کانت الرابعة لم یقم، فلما کانت الثالثة، جمع أهله ونساء ه والناس، فقام بنا حتی خشینا أن یفوتنا الفلاح، قال: قلت: وما الفلاح؛ قال السحور ثم لم یقم بقیة الشهر.

ژباړه: (له حضرت ابوذر رضی الله عنه څخه روایت دی، هغه وایي؛ چې موږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره روژه ونیوله، خو موږ ته يې د تراویح لمونځ را نه کړ، تر دې پورې چې د روژې مبارکې اوه ورځې پاتې شوې، بیا پیغمبر صلی الله علیه وسلم په درویشتمه شپه، د شپې له دریمې برخې وروسته موږ ته لمونځ راکړ ، په څلورویشتمه شپه يې لمونځ را نه کړ، خو په پینځه

---

۶ - فتح الباري شرح صحیح البخاري:۲۵۰/۴:رعمدة القاري للعیني: ۱۲۴/۱۱

۷ - فتح الباري شرح صحیح البخاري:۲۵۰/۴

۸ سنن ابی داود: ۴/ ۲۰۰حدیث۴۶۰۷کتاب السنة باب في لزوم السنة: مسند احمد ۳۷۵/۲۸حدیث ۱۷۱۴۵

ویشتمه شپه حضور صلی الله علیه وسلم د شپې له نیمایي برخې وروسته موږ ته لمونځ راکړ، ما حضور صلی الله علیه وسلم ته وویل: ای د الله رسوله! ښه خبره ده که دا پاتې شپه موږ ته لمونځ راکړې، حضور صلی الله علیه وسلم ورته په ځواب کې وویل، هر څوک چې امام سره د ماخوستن لمونځ وکړي، او بیا کور ته لاړ شي، د ټولې شپې د لمانځه ثواب د هغه په برخه شو، حضرت ابو ذر رضي الله عنه وایي: بله شپه (شپږویشتمه) پیغمبر صلی الله علیه وسلم موږ ته لمونځ را نه کړ، کله چې د روژې درې ورځې پاتې شوې حضور صلی الله علیه وسلم خپله کورنۍ او صحابه کرام رضي الله عنهم را ټول کړل، او اوه ویشتمه شپه یې موږ ته دومره ډېر لمونځ راکړ، چې موږ سره د پېشلمي د قضاء کېدو وېره پیدا شوه، بیا حضور صلی الله علیه وسلم موږ ته د روژې مبارکې په پاتې شپوکې لمونځ را نه کړ.[9]

پیغمبر صلی الله علیه وسلم د روژ ې مبارکې په پاتې شپو کې د تراویح لمونځ ور نه کړ، د دې وېره ورسره وه، چې دا په مسلمانا نو فرض نه شي، چې بیا به یې مسلمانان له اداکولو څخه عاجز وي، خو ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د وینا (چې ما تاسو ته د روژې مبارکې په شپو کې قیام سنت گرځولی) مطابق د روژې په پا تې شپو کې تراویح په وړو جمعو او تنهایۍ سره کړې. حضور صلی الله علیه وسلم به د دوی لمونځونه لیدل او پرې خوشحالېده.

حضرت ابوهریرة رضی الله عنه روایت کوي: «خرج رسول الله صلی الله علیه وسلم فإذا أناس في رمضان یصلون في ناحیة المسجد، فقال: ما هولاء؟ فقیل هولاء ناس لیس معهم قران، وابي بن کعب یصلي، وهم یصلون بصلاته فقال النبي صلی الله علیه وسلم: اصابوا ونعم ما صنعوا.

ژباړه: (حضور صلی الله علیه وسلم یوه شپه راغی، گوري چې خلک په مسجد کې لمونځونه کوي، پیغمبر صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه، دوی څه کوي؟ په ځواب کې ورته وویل شو، چې دوی حافظان نه دي، ځکه ابی بن کعب پسې تراویحو کې

---

۹ سنن ابي داود:۲/۵۰: جامع الترمذي:۳/۱۰۶: سنن ابن ماجه:۱/۴۲۰:مسند احمد ۳۳۱/۳۵

اقتداء کوي، پیغمبر صلی الله علیه وسلم خوشحاله شو او ویې ویل: دا ښه کار دی چې دوی یې کوي).[10]

## د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د تراویح د رکعتونو شمېر

پیغمبر صلی الله علیه وسلم به د تراویح لمونځ شل رکعته کاوه.

لومړی دلیل: د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث:

ابراهیم ابن عثمان عن الحکم عن مقسم عن ابن عباس أن رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یصلي في رمضان عشرین رکعة والوتر.

ژباړه: (پیغمبر صلی الله علیه وسلم به په روژه مبارکه کې شل رکعته تراویح او وتر کول).[11]

د حدیث شریف په اړه لـومړۍ خبره: دغه حدیث سندا حسن دی،[12] خو د علم اصول الحدیث مطابق د حسن په درجه کې قرار لري،[13] بلکې دغه حدیث د احنافو (کثر الله سوادهم) د اصولو مطابق د متواتر په درجه کې قرار لري. مختصرا به د دې حدیث په راویانو کې څه خبرې وکړو:

---

۱۰ سنن ابي داود ۲/۵۰ حدیث۱۳۷۷. سنن الکبري للبیهقي ۲/۶۹۷حدیث۴۲۸۲: اوجزالمسالک الي موطا مالک ۲/۵۱۱و۵۱۲

۱۱ مصنف ابن ابي شیبة:۲/۱٦۴حدیث۷٦۹۲:المعجم الاوسط للطبراني ۵/۳۲۴حدیث ۵۴۴۰باب المیم من اسمه محمد: المعجم الکبیرللطبراني:۱۱/۳۹۳ حدیث ۱۲۰۲السنن الکبري للبیهقي:۲/٦۹۸حدیث ۴۲۸٦

۱۲اعلاء السنن للتهانوي:۷/۸۲:فتاوي دار العلوم دیوبند(عزیز الفتاوي):۱/۲٦۲چاپ دار اشاعت کراچي سال ۲۰۰۱میلادي: تجلیات صفدر ازمولانا محمدامین صفدراکاروي:۳/۱٦۹و۱۸۴و۱۸٦و۲۴۵و۳۰٦و۳۱۱مکتبه امدادیه ملتان

۱۳ د وهابیانو یومشرشیخ ناصرالبانی دغه حدیث شریف په خپل کتاب صلاة التراویح ص ۲۲دابراهیم ابن عثمان عن الحکم عن مقسم عن ابن عباس د سند له امله ضعیف گرځولی، خود ده داوینا ناسمه ده ځکه ده ډېرونوروځایونوکې، چې د دي حدیث مفهوم د دوی د مذهب برابر وي حسن نه، بلکې صحیح بولي. دمثال په ډول: جامع الترمذي حدیث ۱۰۲٦ابواب الجنائز، باب ماجاء في القراة علي الجنازة بفاتحة الکتاب: سنن ابن ماجه حدیث ۱۴۹۵ کتاب الجناءز، باب ماجاء في القراءة علي الجنازة: صحییح المشکاة للالباني: حدیث ۱۷۷۳. نو دوهابیانو دمشرد قاعدې برابرهم دا حدیث صحیح ده.الله پاک د ي مونږ ټول د دین سوزونکې تعصب نه وساتي. امین.

١ ـ د دې حديث راويان ټول ثقات دي، مگر ابراهيم بن عثمان ابو شيبة عبسي (رحمه الله) کې د محدثينو څه اختلاف شته، ډېری محدثين ورته ضعيف وايي، خو ځينو يې توثيق او مدح کړې ده، لکه امام شعبه (رحمه الله) له ده روايت کوي او امام شعبه (رحمه الله) د محدثينو په نزد له ثقه راويانو روايت کوي او بس. قد رواه شعبة وهو لا يحمل عن مشايخه إلا صحيح حديثهم.[14]

٢ـ استاذ الاساتذة امام بخاری (رحمه الله) به د ابراهيم بن عثمان د دار القضاء د کاتب چې حضرت يزيد بن هارون نومېده، ډېر صفت کاوه، «ما قضى على الناس رجل يعني في زمانه أعدل منه».

ژباړه: (د ده په زمانه کې له ده نه عادل قاضي نه دی تېر شوی).[15]

٣ـ امام ابن عدی جرجاني (رحمه الله) د ده په هکله وايي: "وله أحاديث صالحة[16] " (دی ډېر درست احاديث لري)، او بيا وايي: «وهو وإن نسبوه إلي الضعف خير من ابراهيم بن أبي حية».

ژباړه: (خلک اگر که دی ضعيف بولي، خو د ده روايات د ابراهيم بن ابي حيه له رواياتو ښه دي).

د ابراهيم بن ابی حية په هکله امام يحی بن معين وايي: "شيخ ثقة كبير"، ژباړه: (ابراهيم بن ابي حية د احاديثو په رواياتو کې لوی د اعتماد وړ شخص دی).[17] ابراهيم بن ابی حية چې يو مختلف فيه راوي و او احاديث يې د حسن په درجه کې دي، نو د ابراهيم بن عثمان درجه خو په احاديثو کې له ده نه غوره ده، نو قاعدتا ويلی شو، چې د ده احاديث به په درجه کې له حسن نه ټيټ نه وي.[18]

د حديث شريف په اړه دوهمه خبره:

دغه حديث شريف اگر که سندا حسن دی، خو د اصول الحديث مطابق د صحيح په درجه کې دی، لکه علامه سيوطي شافعي (رحمه الله) ليکي: «يحكم للحديث بالصحة إذا تلقاه الناس بالقبول وإن لم يكن له إسناد صحيح».

ژباړه: (کوم حديث شريف چې خلکو قبول کړی وي، هغه په درجه د صحيح کې وي، اگر که صحيح سند هم ونه لري.[19]

د احنافو د اصولو مطابق په درجه کې د حديث متواتر غوندې حيثيت لري، د علم الحديث اصول د احنافو علماوو په نزد دا دي: «الحديث إذا تلقته الأمة بالقبول فهو عندنا في معنى المتواتر ومن شأنه أن لا يشترط عدالة رجاله».

ژباړه: (کله چې حديث د امت مسلمه يوه ډله قبول کړي، هغه د متواتر حديث غوندې دی، د راويانو عدالت ته ضرورت نه لري).[20]

د بحث خلاصه دا شوه، چې دغه حديث شريف د حديثو د اصولو مطابق او د امت د قبولتيا په وجه صحيح او حجت دی.

**دويم دليل: دحضرت جابر (رضي الله عنه) حديث**

«عن جابر بن عبد الله قال خرج النبي صلى الله عليه وسلم ذات ليلة في رمضان فصلى الناس أربعة وعشرين ركعة و أوتر بثلاثة».

ژباړه: (حضرت جابر بن عبد الله وايي: پيغمبر صلى الله عليه وسلم د روژې مبارکې يو شپه کې تشريف راووړ، خلکو ته يې څلورويشت رکعته (څلور رکعت فرض اوشل رکعت تراويح) لمونځ او درې رکعته وتر په جماعت سره ورکړل.)[21]

د حديث شريف په اړه لومړۍ خبره: دغه حديث شريف اگر که د متن په اعتبار سره د حسن په مرتبه کې دی، خو د حديثو د اصولو مطابق او د امت د قبولتيا په سبب صحيح او حجت دی، دا حديث شريف ځکه سندا حسن دی، چې د دې

١٤ فتح الباري في شرح صحيح البخاري:١٣٠٠قوله باب وضوء الرجل. مخکې شعبه (رحمه الله) چې د امام ابراهيم بن عثمان ابوشيبه (رحمه الله) په باره کې سه ويلې وو، علامه ذهبي (رحمه الله) په سير اعلام النبلاء کې د هغه ښکاره اود قناعت وړځوابونه کړي دي. سير اعلام النبلاء للذهبي ٢٢١/٧-

١٥ تهذيب الكمال في أسماء الرجال:١٥١/٢ابراهيم بن عثمان بن خواستي

١٦ تهذيب الكمال في أسمال الرجال:١٥١/٢

١٧ لسان الميزان لابن حجرالعسقلاني:٢٧١/١

١٨ اعلاء السنن للتهانوي العثمانى:٨٢/٧باب التراويح

١٩ تدريب الراوي للسيوطي:٦٦/١

٢٠ قواعد في علوم الحديث للتهانوي العثماني: ص ٦٢و٣٢

٢١ تاريخ جرجان للمحدث الامام في الجرح والتعديل ألسهمي: ص ٣١٦و٣١٧ باب حروف العين

دوه راويانو (محمد بن حميد رازي ۲۴۸ ه ق مړ او عمر بن هارون بلخي ۱۹۴ ه ق مړ) کې د محدثينو کرامو اختلاف دی، او د مختلف فيه راوي روايت د علم الحديث د اصولو برابر د حسن په مرتبه کې وي،[22] نو د دې دواړو حديث به هم د حسن په مرتبه کې وي او د قبول وړ او حجت به وي.

ددې دواړو راويانو په هکله څه تفصيل: محمد بن حميد رازي، مړ ۲۴۸ه ق: د ده احاديث په ترمذي شريف، ابوداود او سنن ابن ماجه کې موجود دی، څنو محدثينو پر هغه نيوکې کړې دي، خو ډېرو محدثينو يې بيا مدح او کره والی بيان کړی دی.

امام أحمد بن حنبل (رحمه الله) به د ده کره والي بياناوه.[23] او کله به يې ويل: «لايزال بالري علم ما دام محمد بن حميد حيا».

ژباړه: (تر څو چې د حميد زوی (محمد) په ری ښار کې ژوندی وي، د حديثو علم به هلته همېشه وي).[24] يحي بن معين د ده باره کې وايي: "ثقة ليس به بأس، رازي کيس".

ژباړه: (هغه ثقة دی، احاديثو کې يې هيڅ مشکل نه شته، رازي ځيرک دی).[25]

امام جعفر طيالسي (رحمه الله) د ده باره کې وايي: «ثقة»، (هغه ثقه دی).[26]

علامه ابن حجر (رحمه الله) ليکي: الحافظ. هغه د حديثو حافظ دی.[27]

علامه ابن الهيثمي (رحمه الله) ليکي: «وفي إسناد البزار محمد بن حميد الرازي وهو ثقة».

ژباړه: (د دې حديث په سند کې په مسند البزار کې محمد بن حميد رازي واقع دی او هغه ثقة دی).[28]

عمر بن هارون بلخي، مړ ۱۹۴ هق: دی د جامع ترمذي، سنن ابي داود او سنن ابن ماجه شريف له راويانو څخه دی، څنو محدثينو پر هغه نيوکې کړې دي، نورو يې بيا مدح، تعديل او جرح په مختلفو الفاظو سره کړې ده. د ده باره کې علماء ليکي: «الحافظ الامام المكثر، عالم خراسان المحدث من أوعية العلم أحسن أخذا للحديث من ابن المبارک، کثير السماع، کان قتيبة يطريه و يوثقه، مقارب الحديث، قال ورأيته (اى الامام البخاري) حسن الرأي فيه».

ژباړه: (د حديثو حافظ دی، په حديثو کې امام دی، ډېر حديث يې روايت کړي دي، د خراسان عالم دی، د علم خزانه ده، د حديثو په اخذ کې له ابن المبارک نه غوره دی، ډېر حديث يې اورېدلي، ثقه دی، مقارب الحديث دی، امام بخارې د ده په هکله ښه نظر لري.[29]

د حديث شريف په اړه دويمه خبره: دغه حديث شريف سندا حسن دی، خو د حديثو د اصولو مطابق صحيح او حجت دی، ځکه چې د امت تلقي بالقبول نه برخمن دی. راشدينو خلفاوو، خاصکر حضرت عمر (رضي الله عنه)، حضرت عثمان (رضي الله عنه)، حضرت علي (رضي الله عنه)، ټولو صحابه کرامو، تابعينو، مجتهدو امامانو، مشايخو حضراتو، اولياء کرامو او... په ټول تاريخ د اسلام کې پرې عمل کړی دی، ټول اسلامي ملکونه يې له ۱۴ پېړيو پخوا راهيسې تر ننه پورې مطابق عمل کوي، د پېغمبر (صلى الله عليه وسلم) ټول امت پر هغه اتفاق او اجماع لري، له دې کبله صحيح او حجت دی، بلکې دغه حديث د احنافو د اصولو مطابق (کثر الله سوادهم) د متواتر حديث په درجه کې دی، نور يې نو په اسنادو کې خبرو ته ضرورت نه شته.

هيڇ کس برهان نجويد بر وجود أفتاب
بر وجود اوظهور او دليل روشن است
أفتاب امد دليل أفتاب
گر دليل خواهي روي از وي متاب

---

۲۲ قواعد في علوم الحديث للتهانوي العثماني: ص۷۲

۲۳ طبقات الحفاظ للسيوطي:۲۱٦/۱محمد بن حميد، شماره ۴۷۹

۲٤ تذکرة الحفاظ للذهبي: ۲۵۸ محمد بن حميد حيان الرازى

۲۵ تهذيب الکمال للمزي:۱۰۰/۲۵و۱۰۱محمد بن حميد بن حيان التميمي، شماره ۵۱٦۷

۲٦ تهذيب الکمال للمزي:۱۰۰/۲۵و۱۰۱

۲۷ تهذيب التهذيب.:۱۲۷/۹محمد بن حميد

۲۸ مجمع الزوائد للهيثمي:۲۹۰/۹حديث ۱۵۵٦۸

۲۹ تذکرة الحفاظ للذهبي ۲۴۸/۱و۲۴۹ عمربن هارون. سيراعلام النبلاء: ۴۱/۸عمربن هارون

**راشـدين خلفـاء او تـراويح!** ټـول صـحابه كـرام (رضي الله عـنهم) د پيغـمبر صـلى الله عليـه وسـلم د وينـا (چې مـا د روژې مباركې په شپوكې د تراويح لمونځ ستاسو لپاره سنت گرځولی دی) مطابق د حضور صلى الله عليه وسلم پـه ژونـد كـې پـه دغـه مبارک سنت عمل كونكي وو، د وړو وړو جمعو په شكل به درې يا څلورو تنو د تراويح لمونځ كـاوه، كلـه كلـه بـه يـې يـوازې تـراويح كولې او پيغمبر (صلى الله عليه وسلم) به د دوی لمونځونـه ليـدل او د خوښې لامل يې گرځېده. حضرت ابـو هريـرة (رضي الله عنـه) وايي: «خـرج رسـول الله صـلى الله عليـه وسـلم فـإذا أنـاس في رمضان يصلون في ناحية المسجد، فقال: ما هولاء ؟فقيل: هـولاء ناس ليس معهم قرأن وأبي بن كعب يصلي وهم يصلون بصـلاته فقال النبي (صلى الله عليه وسلم) أصابوا و نعم ما صنعوا».

ژباړه: (يو شپه حضور صلى الله عليه وسلم راغی، گوري چې خلک په مسجد كې لمونځونه كوي، پيغمبر صلى الله عليـه وسـلم پوښتنه وكړه چې دا خلک څه كوي؟ په ځواب كې ورته وويل شـو، چې دوی د قران كريم حافظان نه دي، له دې كبله دوی پـه أبـی بن كعب پسې د تراويح لمانځه كې اقتداء كوي، پيغمبر صلى الله عليه وسلم وويـل: ډېـر ښـه كـار يـې وكـړ).[30] همـد غـه مضمون حضرت ثعلبـه بـن ابي مالـک قرظـي پـه نـورو الفـاظو سره روايـت كړی، «قد احسنو، او قد أصابو، ولم يكره ذلک لهم».

ژباړه: (پيغمبر صلى الله عليه وسلم وفرمايـل: ښـه كـار يـې وكړ، يا يې وويل: حق ته ورسېدل او پيغمبر صلى الله عليـه وسـلم دا كار بد ونه گاڼه).[31]

د پيغمبر صلى الله عليه وسلم له وفـات وروسـته مهـاجرينو او انصارو حضرت ابوبكر صديق (رضي الله عنه) د خليفه پـه توگـه وټاكه، د ده د خلافت په ټوله زمانه كې تراويح د نبو ي دورې پـه شان كېدې. حضرت ابوهريرة (رضي الله عنـه) روايـت كـړی دی: «ثم كان الأمر علي ذلک في خلافة ابي بكر وصدرا من خلافة عمـر رضي الله عنهما».

ژباړه: (دغه شانته لمونځ د حضرت ابوبكر پـه زمانـه كـې او همدارنگه د حضرت عمر (رضي الله عنه) د خلافت په اولو مرحلـو كې كېده).[32] يعنې د ابو بكر صديق (رضي الله عنه) په زمانه كې د تراويح لمونځ د جماعت په شكل نه كېده، ځكـه ابـوبكر (رضي الله عنه) د خلافت په زمانه كې د هغه فتنو چې نوې پيـدا شـوې وې، لكه ارتداد، د نبوت مدعيان، د زكات منكرين، په له منځه وړولو كې مصروف و، دومره فرصت يې پيدا نه كړ چې دې مسئلې تـه پوره توجه وكړي.

حضرت ابوبكر (رضي الله عنه) په كال ١٣ه د جمادي الثـاني په٢٢مه نېټـه لـه دې دنيـا سـترگې پټـې كـړې. د خلافت چـارې حضرت عمر رضي الله عنه تـه وسپارل شـوې، د ده د خلافـت پـه لومړي كال هم د تراويح لمونځ د حضرت ابـوبكر رضي الله عنـه د خلافت د زمانې په شان وشو، حضرت عمـر رضي الله عنـه د خپـل خلافت په دويم كال رسمي فرمان صادر كړ، چې د تراويح لمـونځ دې نور په جماعت سره وشي.[33] امام بخـاري رحمـه الله دا واقعـه داسې نقل كړې ده. عن عبـد الـرحمن بـن عبـد القـاري أنـه قـال خرجت مع عمر بـن الخطـاب رضي الله عنـه ليلـة في رمضـان الي المسجد فإذ الناس أو زاع متفر قون يصلي الرجل لنفسـه، ويصـلي الرجل فيصلي بصلاته الرهط، فقال عمر: إني أرى لو جمعت هـولاء علي قارئ واحد لكان أمثل ثم عزم فجمعهم علي أبي بن كعب، ثم خرجت معه ليلة أخرى والناس يصلون بصلاة قـارئهم، قـال عمـر: نعم البدعة هذه.

**ژباړه:** (حضرت عبد الرحمن (رضي الله عنـه) وايـي، د روژې مباركې يوه شپه كې زه او حضرت عمـر رضي الله عنـه مسجد تـه لاړو، هلته مو خلک وليدل، چې تنها تنها، يا وړوكو جماعتونـو سره يې لمونځونه كول، حضرت عمر (رضي الله عنه) چې كلـه دا حـال وليد، ويې ويل: كه چېـرې دا ټـول خلـک راجمـع كـړو او يـو امـام پسې د تـراويح لمانځـه اقتـداء وكـړي، نـو دا بـه ښـه خـبره وي، وروسته بيا عمـر رضي الله عنـه كلـک هـوډ وكـړ، چې دا كـار بـه وكړي، څو ورځې وروسته بيـا عمـر رضي الله عنـه خلـک د ابي بـن كعب په امامت راجمع كړل، او تـراويح لمـونځ يـې پـه جمـع سره كاوه، د څو ورځو په تېرېدو يو ځل بيـا زه او عمـر (رضي الله عنـه)

---

٣٠ سنن ابي داود:٢/٥٠حديث ١٣٧٧باب تفريـع أبـواب شـهر رمضـان، بـاب في قيـام شهررمضان

٣١ السنن الكبري للبيهقي:٢/٦٩٧حديث٤٢٨٢ جماع أبـواب صـلاةالتطوع، وقيـام شهررمضان

٣٢ صحيح البخاري:٣/٤٤حديث ٢٠٠٩باب فضل من قام رمضان

٣٣ الحاوي للفتاوي للسيوطي:١/٤١٦ المصابيح في صلاة التراويح

يوه شپه مسجد تـه لاړو، ګـورو چې خلک دا ځـل د يو امـام پـه اقتداء کې د تراويح لمـونځ ادا کـوي، عمـر (رضي الله عنـه) د دې حال په ليدو سره وويل، دا ډېر ښه کار دی).[٣٤] له پورتنۍ مضمـون څخه معلومه شوه، چې پېغمـبر (صلـی الله عليـه وسـلم) د تـراويح لمونځ درې شپې ادا کـړی دی، وروسـته د فرضيت د وېـرې لـه امله پرېښودل شوی. خو صحابه کرام رضوان الله عنهم د پېغمـبر صلی الله عليه وسلم د وينا (چې ما د روژې د شپې تـراويح لمـونځ تاسو لپاره سنت ګرځـولی دی)، (دا حـديث د دې کتـاب پـه سر کې ذکر شوی) مطابق يوازې يوازې، يا دوه، درې، څلور کسانو پـه جماعت سره ادا کاوه. لکه تراويح لمونځ چې د ابي بـن کعـب پـه امامت ادا شوی، پېغمبر (صلی الله عليه وسـلم) د صحـابه کرامـو په دغه کار خوشحاله شو او وېې ويل، چې دوی ډېر ښه کار وکړ. او همدارنګه پوی شوئ، چې امير المومنين حضرت عمـر فـاروق (رضي الله عنه) اولنی کس دی، چې تراويح لمونځ يې پـه جماعـت سره رسما پيل کړ، له دې کبله دې ته سنت عمري وايي.

**د راشده خلفاء تـراويح.** د حضـرت عمـر (رضي الله عنـه)، حضرت عثمان (رضي الله عنـه)او حضرت عـلي (رضي الله عنـه) د خلافت په زمانو کې تراويح شل رکعتـه کېـدې، تفصيلات بـه يې لاندې را شي.

**د حضـرت عمــر (رضي الله عنــه) د تــراويح لمانځــه د رکعتونـو شـمېر.** د حضرت عمـر (رضي الله عنـه) د تـراويح د رکعتونو شمېر اوه کسـانو روايـت کـړی دی، او ټولـو شـل رکعتـه روايت کړي دي، روايتونه يې په لاندې ډول دي.

لومړی: حضرت ابي بن کعب (رضي الله عنه): عـن ابي بـن کعب ان عمر بن الخطاب أمر أبي بن کعـب ان يصـلي باليـل في رمضان فقال: ان الناس يصومون النهار ولا يحسنو ن ان يقـرءوا، فلو قرأت القران عليهم باليل فصلی بهم عشرين رکعة.

ژباړه: (له ابي بن کعب نه روايـت دی چې امـير المـومنين عمر رضي الله عنه هغه ته امر وکړ، چې خلکو ته د روژ ې په شـپو کې لمونځ ورکړه، او وېې ويل چې خلک ټوله ورځ روژه نيسي، خـو ښه قراءت نه شي کولای، که د شپې هغوی تـه لمـونځ ورکـړې او قرأت ورته واوروې، دا به غوره وي، حضرت ابي بـن کعـب (رضي الله عنه) به له دې وروسته خلکو تـه شـل رکعتـه د تـراويح لمـونځ ورکاوه.[٣٥] دا حديث صحيح دی او راويان يې ټول ثقه دي.[٣٦]

**دوهم حضرت سائب:**

حدثنا علي أنا ابن أبي ذئب، عن يزيـد بـن خصـيفة، عـن السائب بن يزيد، قال: کانوا يقومون علي عهـد عمـر في رمضـان بعشرين رکعة وإن کانوا ليقرءون بالمئين من القرآن.

**ژباړه:** (حضرت سائب رضي الله عنه وايي: د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې به صحابه کرامو شـل رکعتـه تراويح کولې، او په هغې کې به يې سل سل ايت لرونکي سـورتونه قرأت کول.[٣٧] د دې حديث شر يف راويان ټول د بخـاري شريـف او مسلم شريف راويان دي، دغه حديث شريف د امام بخاري او امام مسلم د شروطو مطابق صحيح دہ.[٣٨]

عن السائب بن يزيد قال: کانوا يقومون علی عهد عمر بـن الخطاب رضي الله عنه في شهر رمضان بعشرين رکعة، قال: وکانوا يقرءون بالمئين وکانوا يتوکئون عصيهم في عهد عثمان بن عفـان رضي الله عنه من شدة القيام.

ژباړه: (حضرت سائب رضي الله عنـه وايـي: د حضـرت عمـر رضي الله عنه د خلا فت په زمانه کې به صحابه کراموشـل رکعتـه تراويح کولې، اوقاريانو به سل سل ايـت لرونکې سـورتونه پـه کـې تلاوت کول، ، د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت پـه زمانـه کې به خلکو د اوږد قيام له امله په امساګانو تکيه کوله)[٣٩]. د دې حديث راويـان ټـول ثقـه او عـادل دي، دا حـديث صـحيح دی، د

٣٤ صحيح البخاري:٣/٤٥حديث٢٠١٠باب فضل من قام رمضانس

٣٥ مسنداحمدبن منيع:به حواله اتحاف الخيرةالمهرةبزوئدالمسانيد العشرة للبوصيري الکنـاني الشـافعي:٢/٣٨٤حـديث١٧٢٦کتـاب النوافـل ا الاحاديـث المختـارة:٣/٣٦٧حديث ١١٦١ا کنز العمال:٨/٤٠٩حديث ٢٣٤٧١

٣٦ تراويح بيست رکعت سنت مؤکده است، ازمولاناالياس ګمن: ص٢٥

٣٧ مسند ابن الجعد:ص ٤١٣حديث ٢٨٢٥ مخلدبن خفاف

٣٨ تراويح بيست رکعت سنت مؤکده است، از الياس ګمن:ص٢٥

٣٩ السنن الکـبري للبيقـي:٢/٦٩٨و٦٩٩حـديث ٤٢٨٨ا قيـام الليـل للمـروزي:ص٨٠:فضائل الاوقات للبيهقي:ص٢٧٦حديث١٢٧ا عمدة القاري للعينـي:١١/١٢٧:أدلـة الحنفيةمن الاحاديث النبويةللبهلوي:ص٢٢٧حديث٦١٣بـاب في الـتراويح بعشـرين رکعات

حدیثو د فن امامانو او حفاظو، لکه امام نووي، امام ابن العراقي، امام سیوطي، علامه نیموي، علامه تهانوي، علامه بهلوي او علامه اعظمي (رحمهم الله) د احدیث شریف صحیح گرځولی دی.[40]

حدثني یزید بن خصیفة عن السائب بن یزید قال: کنا نقوم في زمان عمر الخطاب بعشرین رکعة و الوتر. ژباړه: حضرت سائب (رضي الله عنه) وايي موږ (صحابه کرامو) به د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې شل رکعته تراویح او وتر کول [41]. دا حد یث صحیح دی، امام سبکي، امام علي قاري هروي، علامه بهلوي، علامه تهانوي او علامه اعظمي دغه حدیث شریف صحیح گرځولی دی.[42]

وروی مالک من طریق یزید بن خصیفة عن السائب بن یزید عشرین رکعة. ژباړه: حضرت سائب رضي الله عنه وايي، چې د حضرت عمر د خلافت په زمانه کې شل رکعته تراویح کېدې[43]. د دې حدیث راویان ټول د بخارې او مسلم راویان دي، دغه حدیث د امام بخاري او امام مسلم د شروطو مطابق صحیح دی، هو به هو همدغه سند په بخارې شریف او مسلم شریف کې شته[44].

عن السائب بن یزید قال: وکان القیام علي عهد عمر ثلاثة وعشرین رکعة. حضرت سائب رضي الله عنه وايي: د حضرت عمر د خلافت په زمانه کې درې رکعته وتر او شل رکعته تراویح کېدلې.[45]

٤٠ اثارالسنن للنیموي:ص ٢٥١حدیث ٧٧٨:اعلاء السنن للتهانوي:٦٩/٧حدیث ١٨٢١:أدلة الحنفیةمن الاحادیث النبویة للبهلوي:ص٢٢٧حدیث٦١٣/ سیراعلام النبلاء للذهبي:٤٠١/١:بذل المجهود في حل سنن أبي داود:١٩/٣تحت حدیث ١٣٧٧

٤١ معرفة السنن والاثارللبیهقي:٤٢/٤حدیث ٥٤٠٩کتاب الصلاة، قیام رمضان / اعلاء السنن للتهانوي:٦٩/٧حدیث ١٨٢١باب التراویح /فتح باب العنایة للقاري: ٣٤٢/١فصل في صلاة التراویح

٤٢ اعلاء السنن للتهانوي:٦٩/٧حدیث ١٨٢١باب التراویح / أدلة الحنفیة من الاحادیث النبویة للبهلو:ص٢٢٧حدیث٦١٣باب في التراویح بعشرین رکعة / رکعات تراویح:ص٦٣بحواله درس ترمذي:٦٥٧/٢

٤٣ فتح الباري لابن حجر:٢٥٣/٤: نیل الاوطار:٦٥/٣تحت حدیث٩٤٦

٤٤ صحیح البخاري: ١٠٣/٣حدیث ٢٣٢٣کتاب المزاعة، باب اقتناء الکلب للحرث /صحیح مسلم: ١٢٠٤/٣حدیث ١٥٧٦کتاب المساقاة، باب الامربقتل الکلاب وبیان نسخه

٤٥ مصنف عبد الرزاق:٢٦١/٤حدیث ٧٧٣٣کتاب الصوم، باب قیام رمضان

**دریم حضرت محمد بن کعب قرظي رحمه الله:**

و قال محمد بن کعب القرظي، کان الناس یصلون في زمان عمر بن الخطاب رضي الله عنه في رمضان عشرین رکعة یطیلون فیها القراء ة و یوتر ون بثلاث.

**ژباړه:** جلیل القدر تابعي حضرت محمد بن کعب قرظي (رحمه الله) وايي خلکو به د حضرت عمر د خلافت په زمانه کې شل رکعته تراویح او درې رکعته وتر کول.[46] دغه حدیث شر یف هم صحیح دی.[47]

**څلورم حضرت ابن رومان (رحمه الله)**

عن یزید بن رومان انه قال: کان الناس یقومون في زمان عمر بن الخطاب بثلاثة وعشرین رکعة في رمضان.

ژباړه: (حضرت ابن رومان رحمه الله روایت کوي، چې خلکو به د عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې درویشت رکعته لمونځ کاوه).[48] (شل رکعته تراویح او درې رکعته وتر). دغه حدیث شریف قوي مرسل دی، دغه حدیث شریف صحیح ده، د دې حدیث شریف د سند تفصیل به ان شاء الله باب في التراویح بعشرین رکعات کې وکتل شي[49].

**پنځم حضرت یحي بن سعید رحمه الله**

عن یحي بن سعید أن عمر بن الخطاب أمر رجلا یصلي بهم عشرین رکعة.

ژباړه: (حضرت یحي بن سعید رحمه الله وايي، چې امیر المومنین حضرت عمر رضي الله عنه یو سړي ته امر وکړ، چې

٤٦ قیام الیل للمروزي:ص ١٥٧ / قیام رمضان للمروزي: ص٢٢٠باب عدد الرکعات التي یقوم بها الامام للناس في رمضان

٤٧ تراویح بیست رکعت سنت مؤکده است، ازمولاناالیاس گمن: ص ٢٩تا٣١

٤٨ مؤطا مالک:١١٠/١حدیث ٢٨١باب وقوت الصلاة، باب ماجاء في قیام رمضان /اثارالسنن للنیموي:ص ٢٥٣حدیث ٧٧٩ باب في التراویح بعشرین رکعات /ادلة الحنفیة من الاحادیث النبویة للبهلوي:ص ٢٢٧حدیث ٦١٥باب في التراویح بعشرین رکعة / بذل المجهود في حل سنن أبي داود:٢٠/٣تحت حدیث ١٣٧٧

٤٩ تراویح بیست رکعت سنت مؤکده است، ازمولانا الیاس گمن:ص٢٨

خلکو ته شل رکعته تراویح لمونځ ورکړي).[50] دغه حدیث قوي مرسل دی.[51] او راویان یې ټول ثقه دي.[52]

**شپږم حضرت عبد العزیز بن رفیع رحمه الله:**

عن عبد العزیز بن رفیع قال: کان أبي بن کعب یصلي بالناس في رمضان بالمد ینة عشرین رکعة ویوتر بثلاث.

ژباړه: (عبد العزیز بن رفیع رحمه الله وایي، حضرت ابي بن کعب به د روژې په میاشت کې خلکو ته مدینه منوره کې شل رکعته تراو یح او درې رکعته وتر لمونځ ورکاوه.[53] دغه حدیث شریف قوي مرسل دی او صحیح دی.[54] مشهور قول دی چې أبي بن کعب د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې وفات شوی دی.[55] نو ویلی شو چې حضرت عبد العزیز رحمه الله به د عمر رضي الله عنه د زمانې تراویح بیان کړې وي، ځکه مو د هغه حدیث دلته ذکر کړ.

**اووم حضرت حسن بصري (رحمه الله)**

عن الحسن أن عمر بن الخطاب جمع الناس علي أ بي بن کعب فکان یصلي لهم عشر ین رکعة.

ژباړه: (حسن بصري (رحمه الله) وایي، حضرت عمر (رضي الله عنه) خلک أبي بن کعب ته راټول کړل (ترڅو خلکو ته د روژې په شپو کې تراویح ورکړي). حضرت أبي بن کعب (رضي الله عنه)

50 مصنف ابن ابي شیبة:۲/۱۶۳حدیث ۷۸۲۲کتاب الصلاة التطوع والامامة وأبواب متفرقة، کم یصلي في رمضان من رکعة /أثار السنن للنیموي:ص ۲۵۳حدیث ۷۸۰باب في التراویح بعشرین رکعات

51 اثارالسنن للنیموي:ص ۲۵۳حدیث ۷۸۰|بذل المجهود في حل سنن أبي داود: ۳/۲۰تحت حدیث ۱۳۷۷.

52 اعلاء السنن للتهانوي: ۷/۷۰حدیث ۱۸۲۲|باب التراویح

53 مصنف ابن ابي شیبة:۲/۱۶۳حدیث ۷۶۸۴| اقار السنن مع تعلیق الحسن للنیموي:ص ۲۵۳حدیث ۷۸۱|اعلاء السنن للتهانوي:۷/۷۰ حدیث ۱۸۲۳

54 اثار السنن للنیموي:ص ۲۵۳حدیث ۷۸۱ / اعلاء السنن للتهانوي: ۷/۷۰حدیث ۱۸۲۳ / سیرأعلام النبلاء:۱/ ۴۰۱ / بذل المجهود في حل سنن أبي داود: ۳ /۲۰

55 تهذیب التهذیب لابن حجر: ۱/ ۱۸۸



به له دې وروسته خلکو ته شل رکعته د تراویح لمونځ ورکاوه).[56] د دغه حدیث راویا ن ټول ثقه دي، تفصیلات به وروسته راشي.[57]

**د ټېرو روایاتوخلاصه:** د ټېرواحادیثو خلاصه داده چې د حضرت عمر رضي الله دخلافت په زمانه کې په شل رکعته تراویحو باندې مواظبت قولا، فعلا او تقریرا ثابت دی، او حضرت عمر (رضي الله عنه) د ټولو مهاجرو او انصارو صحابه کرامو په موجودیت کې دا کار جاری کړ او هیچا په هغه اعتراض ونه کړ، نو دا په شل رکعته تراویحو د صحابه کرامو اجماع شوه.

**د حضرت عثمان رضي الله عنه د تراویحو بیان د** حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې هم لکه د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت د زماني په شان شل رکعته تراویح کېدې، او د قرآن کریم حافظانو به سل سل ا یت لرونکي سورتونه تلاوت کول، خلکو به د ستړیا له امله په امساګانو تکیې کولې، لکه چې حضرت سائب رضي الله عنه وایي. عن السائب بن یزید قال: کانوا یقومون علي عهد عمربن الخطاب رضي الله عنه في شهر رمضان بعشرین رکعة قال: وکانوا یقرء ون بالمئین وکانوا یتوکئون علي عصیهم في عهد عثمان بن عفان رضي الله عنه من شدة القیام.

56 جامع المسانید والسنن لابن کثیر ۱/ ۸۶حدیث ۳۱ حرف الألف/ سیر اعلام النبلاء للذهبي:۳/ ۲۴۲ / سنن ابي داؤد۲/ ۶۵ حدیث ۱۴۲۹

57 تراویح بیست رکعت سنت مؤکده است، ازمولانا الیاس گ۲من: ص ۳۳و ۳۴

ژباړه: (حضرت سائب رضي الله عنه وايي، صحابه کرامو او تابعینو به د حضرت عمر رضي الله عنه او د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانو کې تراویح شل رکعته کولې، د قران کریم حافظانو به سل سل ایت لرونکي سورتونه تلاوت کول، خلک به د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې د اوږدو ایتونو له امله ستړي کېدل، بیا به یې په خپلو امساګانو باندې تکیې کولې.[58] د غه حدیث شریف صحیح دی،[59] امام بخاري او امام مسلم هم دې حدیث ته صحیح ویلي.

**د حضرت علي رضي الله عنه د تراویحو بیان:**

د امیر المومنین حضرت علي رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې هم تراویح شل رکعته کېدلې. دغه احادیث درې بزرګانو روایت کړي دي.

**لومړی د پیغمبر صلی الله علیه وسلم لمسی، حضرت حسین رضي الله عنه**

حدثني زيد بن علي عن ابيه عن جده عن علي أنه امر الذي يصلي بالناس صلاة القيام في شهر رمضان ان يصلي لهم عشرين ركعة يسلم في كل ركعتين ويراوح ما بين كل اربع ركعات فيرجع ذو الحاجة و يتوضأ الرجل، وأن يوتر بهم من أخر اليل حين الانصراف.

ژباړه: (حضرت زید(رحمه الله) له خپل پلار حضرت امام زین العابدین (رحمه الله) نه او هغه له خپل والد محترم حضرت امام حسین نه روایت کوي، چې امیر المومنین علي رضي الله عنه هغه سړي ته چې د تراویحو د امامت دنده یې ورته سپارلې وه، امر وکړ چې خلکو ته دې شل رکعته تراویح لمونځ ورکړي، او له هر دوه رکعته وروسته دې سلام وګرځوي، او د هر څلور رکعته وروسته دې دومره دمه وکړي، چې خلک اودسونه تازه کړي، او دا یې هم ورته وویل چې وتر دې په أخر کې خلکو ته ورکړي.[60]

د دې حدیث شریف راویان ټول د رسول کریم صلی الله علیه وسلم اهل بیت دي او ټول ثقه دي.[61]

دویم: حضرت عبد الرحمن سُلمِي (رحمه الله) عن أبي عبد الرحمن السلمي، عن علي رضي الله عنه قال: دعا القرأء في رمضان فأمر منهم رجلا يصلي بالناس عشرين ركعة، قال وكان علي رضي الله عنه يوتر بهم.

ژباړه: (حضرت ابو عبد الرحمن سلمي رحمه الله وايي، امیر المومنین علي رضي الله عنه روژه مبارکه کې د قران کریم حافظان خپل خواته راوبلل او په هغوی کې یې یو کس ته امر وکړ، چې خلکو ته شل رکعته تراویح لمونځ ورکړي، حضرت علي رضي الله عنه به په وترو کې خپله امامت کاوه.[62] دغه حدیث شریف د استدلال او حجت وړدی.[63]

**دریم حضرت ابو الحسناء (رحمه الله):**

عن ابن أبي الحسناء أن عليا أمر رجلا يصلي بهم في رمضان عشرين ركعة.

ژباړه: (حضرت ابو الحسناء روایت کوي، چې امیر المومنین حضرت علي رضي الله عنه یو سړي ته امر وکړ، چې خلکو ته روژه مبارکه کې شل رکعته تراویح ورکړي.[64] دغه حدیث شریف د حسن په درجه کې دی.[65] دغه حدیث شریف روښانه کوي، چې حضرت علي رضي الله عنه به خلکو ته د شل رکعته تراویحو په ادا کولو امر کاوه.

---

۵۸ السنن الكبري للبيهقي: ۲/ ۶۹۸و۶۹۹حديث ۴۲۸۸كتاب الصلاة / معرفة الاثار والسنن للبيهقي:۴/ ۴۲حديث ۵۴۰۹ كتاب الصلاة قيام رمضان

۵۹ اثار السنن للنيموي: ص ۲۵۱حديث ۷۷۸باب في التراويح بعشرين ركعة / اعلاء السنن للتهانوي: ۷/ ۶۹ حديث ۱۸۲۱باب التراويح / ادلة الحنفية من الاحاديث النبوية للبهلوي:ص ۲۲۷حديث ۶۱۳باب في التراويح بعشرين ركعة / سير اعلام النبلاء للذهبي:۱ /۴۰۱

٦٠ مسند الامام زيدبن علي:ص ۱۳۹جاپ بيروت وص ۱۳۳چاپ لاهورباب القيام في شهر رمضان

٦١ تراويح بيست ركعت سنت مؤكده است ازمولانا الياس گمن:ص ۳۸ تا۴۰

٦٢ السنن الكبرى للبيهقي:۲/۶۹۹حديث ۴۲۹۱باب ماروي في عدد ركعات القيام في شهر رمضان / اثار السنن مع تعليق الحسن للنيموى:ص۲۵۴باب فى التراويح بعشرين ركعات

٦٣ تراويح بيست ركعت سنت مؤكده است ازمولانا الياس گمن:ص ۳۸تا۴۰

٦٤ مصنف ابن شيبة: ۲/۱٦۳حديث ۷٦۸۱ /اثارالسنن مع التعليق الحسن:ص ۲۵۵ / اعلاء السنن للتهانوي:۷/ ۷۷

٦٥ اعلاء السنن للتهانوي:۷/۸۸باب التراويح .

# د شهید مولوي نسیم الله صدیقي

# ژوند ته کتنه

عبدالرؤف حکمت

مرگ حق دی، له الله تعالی پرته هرشی د مرگ څکه کوي،خو لکه څنگه چې هرنفس له مرگ سره مخامخیدل یو محکم حقیقت دی همدارنگه دا هم یوه منل شوې خبره ده چې د ځینو کسانو له دنیا څخه رحلت په ظاهره مرگ بلل کیږي اما حقیقتا هغوی د تلپاتې ژوند په انعام ویاړل شوي وي.

الله تعالی د حق دلارې د شهیدانو په اړه فرمایلي دي :

ژباړه: او تاسو د الله تعالی په لار کې په وژل شویو کسانو د مړو گمان مه کوئ، بلکې هغوی ژوندي دي د الله تعالی په نزد رزق ورکول کیږي .۱۶۹سورة آل عمران

د الله تعالی په نزد هر هغه څوک شهید بلل کیږی چې دالله تعالی په لار کې ورته مرگ حاضر شي،که څه هم په مخامخ جنگ کې د دښمن په مرمی نه وي لگیدلی،څکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: من فصل ( أي خرج ) في سبيل الله فمات أو قتل فهو شهيد ، أو وقصه فرسه أو بعيره أو لدغته هامة ، أو مات على فراشه بأي حتف شاء الله فإنه شهيد وإن له الجنة) [أخرجه أبو داوود]

شهید مولوي نسیم الله صدیقي چې د حق دلارې یو مخلص مجاهد و کله چې په جهادي سفر کې زخمي شو الله تعالی ورته شفاء نصیب کړه اما په همدې سفر کې ورته داسې مرض پیښ شو چې دده د وفات سبب شو او خپل روح یې اصلي مالک ته وسپاره،څرنگه چې ددغه مرض حدوث د جهادي خدمت په وخت کې و نوځکه نوموړي ته د شهید ویاړمن لقب ورکولای شو.

**مولوي نسیم الله**

مولوي نسیم الله صدیقي د مولوي حمیدالله زوی د مولوي عبدالحکیم لمسی په ۱۳۴۸ هـ ش کال د افغانستان د تخار ولایت د فرخار په ولسوالۍ کې دنیا ته راغلی.

نوموړی چې په یوه علمي او دین دوسته کورنۍ کې زیږیدلی و، والدین یې له کوچنیوالي دیني تربیې ته متوجه و چې په دې لړ کې یې نوموړی د ماشومتوب په مهال د فرخار ولسوالۍ په خسده سیمه کې د مولوي حبیب الله اخندزاده په نوم له عالم سره شاگرد کړ تر څو خپلې ابتدایي دیني زده کړې ترې حاصلې کړي .

په افغانستان د شورویانو له یرغل وروسته کله چې په ملیونونو افغانان د خپل هیواد پریښودلو او هجرت ته مجبور شول د مولوي نسیم الله کورنۍ هم په ۱۳۵۹ هـ ش کال له خپلې اصلي سیمې تخار څخه د پاکستان د خیبرپښتونخوا د صوابۍ سیمې ته هجرت وکړ او هلته په درگي نومې کمپ کې ځای په ځای شول.

مولوي نسیم الله چې دغه مهال ماشوم و، دیني زده کړو ته یې دوام ورکړ او دپاکستان په مختلفو مدارسو کې یې دیني کتابونه ولوستل تردې چې د فنونو کتابونه یې خلاص او وړې دورې پورې یې خپله تعلمي سلسله ورسوله .

**د طالبانو له تحریک سره پیوستون**

مولوي نسیم الله صدیقي په ۱۳۷۳ هـ ش کال د پاکستان په مردان کې په یوه مدرسه کې د وړې دورې کتابونه لوستل،نوموړی د یوه خواریکښ او د علم د عاشق طالب په حیث یوازې دیني تعلم ته متوجه و او ددنیا په نورو جریاناتو یې کار نه درلود، همدغه مهال د افغانستان په کندهار ولایت کې د طالبانو اسلامي تحریک قیام وکړ، او له بیلابیلو مدارسو څخه د طالبانو د پیوستون بهیر ورسره پیل شو.

په همدې شپې ورځو کې د احادیثو او تفسیر طالب مولوي نسیم الله په خوب کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویني چې ورته وایي: لاړ شه او د طالبانو د تحریک ملګری شه!

مولوي نسیم الله چې له خوبه راپاخیږي په هماغه سهار خپل کتابونه کت کوي او له څو تنو نورو ملګرو سره یوځای د کندهار په خوا روانیږي ترڅو د طالبانو له اسلامي تحریک سره ملګری شي،دغه وخت طالبانو د کندهار ښار او په جنوب کې ګڼې نورې سیمې فتح کړې وې او د کابل په خوا د پرمختګ په حال کې وو.

**په اسلامي امارت کې خدمتونه**

مولوي صاحب نسیم الله چې د تخار،کندز، بغلان، سمنګان اولغمان ولایاتو یو شمیر طالبان ورسره و د طالبانو د اسلامي تحریک سره ملګری شو،دزابل، غزني او میدان وردګ له تصفیې وروسته دوی کابل ته ورسیدل او د لوګر لخوا د چهاراسیاب په خط کې ځای په ځای شول،دلته د مولوي نسیم الله د مسؤلیت ساحه د ریشخورو فرقې ته خیرمه وه،همدغه مهال نوموړي ته د عالیقدر امیرالمؤمنین لخوا د تخار ولایت د طالبانو د مشرۍ چاره وسپارل شوه،مولوي نسیم الله صاحب د چهاراسیاب په جهادي کرښه کې خپل مسؤلیت په ډیره ایمانداری ترسره کړ،همدلته یې دوه تنه تکړه او نږدې ملګري مخدوم لطیف صاحب او ملا موسی جان شهیدان شول،د چهاراسیاب او محمدآغې په سیمه کې دجهادي چارو سره هم مهال نوموړي ته د شهید مولوي احسان الله احسان صاحب لخوا چې هغه وخت د خوست والي ود خوست ښار د امنیت مسؤلیت وسپارل شو،چې ددې ښار په امن کولو او د نظم په اعاده کې یې د یاد وړ نقش ولوباوو.

د کابل له فتحې څه موده وړاندې چې کله د پکتیکا په اورګون ولسوالۍ کې د خالد فاروقي او یوشمیر نورو مخالفو وسلوالو لخوا تعرض پیل شو، مولوي نسیم الله صدیقي له خپلو ملګرو سره اورګون ته لاړ او د شروفساد د ټوپکیانو د ټغر ټولولو په عملیاتو کې یې برخه واخیسته.

مولوي نسیم الله صدیقي لا په پکتیکا کې و،چې د پلازمینې کابل د فتحې لپاره د شهید ملابورجان په مشرۍ عملیات پیل شول، دغه عملیات چې د پکتیا د سپینې شګې سیمې له نیولو سره پیل شول مولوي نسیم الله ورسره له همدې ځایه ملګری شو، نوموړي او تر قومانده لاندې ملګرو یې د دننګرهار او لغمان ولایت د تصفیې په عملیاتو کې عملي ونډه درلوده، د لغمان په ولایت کې د علیشنګ ، علینګار او دولت شاه ولسوالیو د تصفیې او د شروفساد له عناصرو څخه د خلاصولو مسؤلیت د مولوي

نسیم الله صاحب په غاړه وهچې خپله دغه وظیفه یې په ډیره ښه توګه انجام کړه .

د پلازمینې کابل د فتحې په تعقیب چې کله دپروان ولایت مرکز هم فتحه شو،مولوي نسیم الله صدیقي له لغمان څخه پروان ته راغی او د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د پروان د امنیه قوماندان په حیث وټاکل شو.

د مولوي نسیم الله نږدې ملګري مولوي محمد محسن هاشمي چې هغه مهال یې له نوموړي سره د امنیه قوماندانۍ د مرستیال په حیث دنده اجراء کوله وایي: مولوي صاحب په هغو پیچیده شرایطو کې خپله دنده په ډیره ښه توګه ترسره کړه،د نوموړي په هڅو په شمالي کې ددښمن ډیر قومندانان او افراد په سوله ییزه توګه له جګړې لاس په سر شول او له اسلامي امارت سره یوځای شول، زما په یاد چې د مخالفینو یو مشهور قومندان چې آصف نومیده د مولوي نسیم الله صاحب د دعوت په برکت نه یوازې له خپلو وسلوالو سره له مخالفت څخه لاس په سر شو بلکې یو موټر مهمات او وسلې یې هم اسلامي امارت ته تسلیم کړې.

د افغانستان د کار او ټولنیزو چارو د لوی ریاست پخواني رئیس مخدوم عبدالسلام سعادت صاحب د مولوي صاحب همدې صفت ته اشاره کوي او وایي: مولوي نسیم الله ته الله تعالی ډیر جذاب شخصیت او حسنه اخلاق ورکړي و، د عوامو خلکو د جلب او د خلکو د زړونو د راخپلولو لپاره یو اغیزناک شخصیت و، د نوموړي په توسط ډیر زیات طالبان او عام خلک د اسلامي امارت له صفوفو سره یوځای شول چې بیا یې د اسلامی نظام او جهاد په لاره کې لوی لوی خدمتونه وکړل.

کله چې په شمال کې د طالبانو جنګي خط له ګلبهار او جبل السراج څخه راپر شا شو او دکابل حدودو ته راورسید دغه وخت نوموړي د شکردرې او ګلدرې په سیمو کې جهادي مسؤلیت په غاړه واخیست او د شراو فساد عناصرو په وړاندې یې پرلپسې مقاومت ته ادامه ورکوله.

نوموړي د کابل د شمال د بیلابیلو سیمو سربیره په غوربند او بادغیس ولایت په جنګي خطوطو کې هم جهادي دنده اجراء کړې ده .

وفات یې: مولوي نسیم الله صدیقي د شکردرې په جنګي خط کې له دښمن سره په جګړه کې زخمي شو،د جګړې له سیمې د علاج لپاره انتقال شو چې الله تعالی ورته شفاء نصیب کړه،اما څه موده وروسته چې نوموړی په جهادي خدمت بوخت و ناڅاپه په یوه سخته ناروغي مبتلا شو،څرنګه چې د نوموړي علاج د هیواد په داخل کې ممکن نه و د علاج لپاره د پاکستان پیښور ته انتقال شواو هلته په کویټي شفاخانه کې بستر او عملیات شو، خو د مرض د سختوالي له امله ډاکټرانو مشوره ورکړه چې دپاکستان کراچي ته انتقال شي،نوموړي له پیښور څخه کراچي ته د تګ په مهال په طیاره کې په نیمه لاره خپل روح اصلي مالک ته وسپاره او د شهادت جام یې نوش جان کړ.

انا لله وانا الیه راجعون .

د مولوي صاحب جنازه کابل ته انتقال شوه د کابل په عیدګاه کې یې د اسلامي امارت د لوړپوړو چارواکو د ریاست الوزراء مرستیال مولوی عبدالکبیرصاحب او دفاع وزیرملا عبیدالله اخند په ګډون جنازه اداء شوه او بیا یې جسد د کابل په شهدای صالحین هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

## رسمي وظايف

مولوی صاحب نسیم الله صدیقي د اسلامي امارت په لیکو کې د خدمت په مهال لاندې مسؤلیتونه ترسره کړي:

د تخار ولایت د طالبانو مسؤل

د خوست ښار د امنیت مسؤل

د پروان ولایت امنیه قومندان

د پروان ولایت اداري رئیس

د شکردرې په جنګي کرښه کې د یوه محاذ مسؤل

د شپاړسمې فرقې قومندان

د ۲۲ مې لواء قومندان

د مولوي نسیم الله کورنۍ

د مولوي نسیم الله کورنۍ دده له والدینو او څو ورونو او خویندو جوړه وه، د مولوي صاحب مشر ورور چې قاري انعام الله نومیده او مولوی نسیم الله صدیقي څخه وروسته دده ځایناستی وټاکل شو دامریکایانو دیرغل په لومړیو شپو کې د خوست ولایت په مټه چینه سیمه کې د یرغلګرو په بمبار کې په شهادت ورسید، مولوي نسیم الله صاحب واده کړی د وفات تر وخته یې د واده دوه کاله وتلي و، له نوموړي څخه کوم اولاد نه دی پاته شوی .

## د مولوی نسیم الله صدیقي د شخصیت په اړه

د افغانستان د کار او ټولنیزو چارو د لوی ریاست پخوانی رئیس مخدوم عبدالسلام سعادت صاحب وایي:

زه د مولوي نسیم الله صاحب سره لومړی هغه مهال شناخته شوم چې د طالبانو خط په چهاراسیاب کې و،په لومړي ملاقات کې ما درک کړه چې نوموړي ته الله تعالی په ژور علمي استعداد سربیره، د اخلاص ،تقوی او دیانت شرف هم وربه برخه کړی دی،نوموړی ډیر له خلوصه ډک او محبت کوونکی شخص و چې ټول مجاهدین ترې ډیرې ښې خاطري لري .

نوموړي د خلکو په جلب او جذب او داسلامی امارت له لیکو سره په وصل کولو کې لوی لاس درلود،نه یوازې یي جهادي تجربه او همت درلود بلکې ښه عالم او په شخصي لحاظ متقی انسان و، د نوموړي له کورنۍ او نږدې ملګرو څخه ډیرو کسانو دفساد او وروسته دامریکایي اشغال په مقابل کې جهاد کې فعاله ونډه اخیستې ،ډیرې قربانۍ یي ورکړې دي او لا هم خدمتونه ترسره کوي.

د تخار ولایت پخوانی جهادي مسؤل او د مولوي نسیم الله صاحب نږدې ملګری مولوي محمد محسن هاشمي وایي :

مولوی نسیم الله واقعا د زهد،اخلاص،نیکواخلاقو، سخاوت او میړانې نمونه وه،هغه د رفاقت او اخلاص یو ځانګړی خصلت درلود، همیشه به یي په شونډو موسکا خپره وه، په دې سربیره ورته الله تعالی ښه استعداد ورکړی و،او په تقریر کې یي ځانګړی تاثیر پروت و.

نوموړی د خپل اخلاص له امله د اسلامي امارت د زعیم ملامحمد عمر مجاهد سره خورا نږدې تعلقات او حسنه روابط درلودل او په ده یې کامل اعتماد درلود نو ځکه یي ورته همیشه مهم مسؤلیتونه سپارل، الله تعالی دې په نوموړي رحم وکړي او الله تعالی دې دده خدمتونه په خپل دربار کې قبول وګرځوي .

رحمه الله تعالی

ژ- خبیر

# یونان: کاشکې د اروپايي اتحاد برخه نه وای

د یونان د مالیې وزیر تیره اونی وویل چې کاشکې یې هېواد د اروپايي اتحاد سره یو ځای شوی نه وای او خبرداری یې ورکړ چې د مالي ژرغورنې پر هیڅ داسې موافقې باندې به لاس لیک ونکړي چې په لړ کې یې یونان د هغه په وینا د مرګ په دام کې ولوېږي.

په داسې حال کې چې د یونان د مالي موافقې د لاس لیکېدو خبره لا لیرې ده، دا خطر شته چې په راتلونکو څو ورځو کې د یونان پیسې خلاصې شي.

د یونان د حکومتي راډیو تلویزون په سلګونو پخواني کارمندان خپل د پخواني کار ځای ته وروسته له هغه نه په بیرې ورغلل چې حکومت اعلان وکړ چې دغه راډیو تلویزون به چې ۶۰ کاله مخکې تاسیس شوی و، بیرته فعاله کړي.

د یونان پخواني حکومت دغه راډیو تلویزون په ۲۰۱۳ کال کې وتړی او ۲۶۰۰ کسان یې د خپلو وظیفو څخه پسې- واخیستل ترڅو یونان ته د پور ورکونکو غوښتنې پرځای شي چې ویل د یونان حکومت باید په خپلو لګښتونو کې کموالی راولي.

ددغه راډیو تلویزون بیرته فعاله کېدل د سریزا ګوند په مشرې د حکومت هغه پلانونه په ډاګه کوي چې د انتخاباتو پر مهال یې ویلي و چې د حکومت پر لګښتونو باندې لګیدلي بندیزونه به لیرې کړي.

پناګیوتیس حساپیس چې د دې تلویزون پخواني کار مند دی او د تخنیک په برخه کې کار کوي، زړه او نازړه معلومېږي. هغه داسې وایي "د ۲۳ ماشتو وروسته مونږ د راډیو تلویزون تعمیر ته بیا ننوځو د کوم ځای څخه چې پولیسو مونږ په زوره وایستلو. زه داسې فکر کوم چې وړونکی یم خو دغه بریا یو ډول تریخ خوند لري".

د یونان اقتصاد په رکوت کې دی

د یونان مالي بحران لا ډېر وختي دی چې ختم شي. ددغه هېواد اقتصاد بیا خراب شوی دی. په لندن کې میشت د آزادې اروپا په نامه د پالیسۍ په برخه کې د یوه څېړنیز مرکز کارپوه، راول روپرل د دې مسلې ملامتي د اروپايي اتحاد او یونان ترمنځ پر مزاکراتو اچوي چې ډېر وخت یې ونیوی.

هغه وایي "په داسې حال کې چې دغه مسایل همدغسې ادامه پیدا کوي د یونان پر اقتصاد باندې اعتماد مخ پر کمېدو دی."

یونان نړیوال وجهي صندوق ته ۸۵۸ میلیونه ډالر پور بیرته تادیه کړی دی خو دغه پیسې یې هم په نړیوال وجهي صندوق کې د خپلې زخیرې څخه راخیستي دي.

د یونان د مالیې وزیر یانس وروفاکیس خبرداری ورکړی دی چې د هېواد پیسې یې کیدای شي په راتلونکو دوو اونیو کې خلاصې شي او دغه هېواد به ونشي- کړای

چې خپل پورونه او لګښتونو ادا کړي. هغه چې د پنجشنبې په ورځ یې خبرې کولې، دا یې توضیح کړه چې هېواد یې ولي نشي کولای چې د اروپایي اتحاد د ژورو اصلاحاتو غوښتنې ومني.

هغه وویل "که چیري زه پر کومې مواقې باندې لاس لیک وکړم نو د نورو مالیې وزیرانو په شان به وي چې د مینځنۍ مودې مالي موافقې یې لاس لیک کړې په داسې حال کې چې ښه هم پوهېدل چې دا خبره امکان نلري. چې سم حساب سړی وکړي، دا خبره امکان نلري".

یونان باید د مې د میاشتې په پای کې ۲،۲ ملیارده ډالره پیدا کړي چې د خپلو کارمندانو معاشونه او تقاعدیانې برابرې کړي. دغه راز د جولای او اګست په میاشتو کې یونان باید د ۷،۷ ملیاردو ډالرو په بیه اسهام د اروپایي اتحاد مرکزي بانک ته ورکړي.

د اقتصادي چارو کارپوه راوول روپیرل وایي چې که چیري یونان دا ونکړي نو عواقب به یې ښه نه وي.

هغه وایي "که چیري یونان نړیوال وجهي صندوق ته د خپل پور په ادا کولو کې یو واري بیا پاته راشي، کیدای شي چې وجهي صندوق ورسره یو څه نرمښت وښیي دغه راز که چیري خپلو اتباعو ته د معاش په ورکولوکې پاته راشي نو سیاسي جنجالونه به پیل شي خو اقتصادي سقوط به رامنځ ته نشي خو که چیري د جولای او اګست په میاشتو کې د اروپایي اتحاد مرکزي بانک ته د پور په تادیې کې پاته راشي نو پر مارکیټ باندې به د دې مسلې تاثیر ډیر زیات منفي وي".

د لندن د کوینس مري پوهنتون یو پروفیسور، لیونیس کوکاریس وایي چې یونانیان د یوې بدې مرحلې پر لوري روان دي "خلګ د بانکونو څخه خپلې پیسې باسي. ډیرې هڅې روانې دي چې په بانکونو کې بیرته پیسې ولوېږي خو د نامعین وضعیت له کبله دغو هلو ځلو داسې ښه نتیجه نه ده ورکړې څکه مونږ په دې نه پوهېږو چې راتلونکې دوشنبې به څه وشي او دغه راز په راتلونکو اونیوو کې به څه وشي".

که چیري یونان او اروپایي اتحاد موافقه لاس لیک نکړي نو د یونان د پور بحران به نور هم پسې-غټ شي او په راتلونکو څو ورځو کې به دغه هیواد مفصله شي.



## قاري سعيد

مور د ډبرو له بارانه کډې نه دي کړې
مور د هندارو له غباره کډه واخیسته

بیا به دهسک لمنې سرې کړي دشیطان په وینو
بیا یوه ستوري له مداره کډه واخیسته

زړه خو همدا وو څه داوښکو په ویاله وبهېد
پاتې د آه افسوس په لاره کډه واخیسته

داسې یې وګڼه چې روح وو له کالبوته ووت
سعیده درد که له پرهاره کډه واخیسته

# د ناټو خیال پلوونه وارسا په ګور کې

د مئ په ۱۳ او ۱۴ مه دترکیې په انتالیا ښار کې دناټو دبهرنیو چارو وزیرانو دافغان ماموریت په هکله غونډه درلوده، په دې غونده کې دناټو سرمنشي ینس استولټنبرګ وویل چې افغانستان به په هیڅ صورت یوازې پرینږدي، د خپل څوارلس کلن ماموریت لاسته راوړني به ساتي، خو له دې وروسته به خپل حضور دملکي مامورینو په واسطه تنظیموي اوضمنا به پوځي شتون هم جاري ورسره ساتي، همدا راز په دغه ناسته کې پریکړه وشوه چې ناټو به له دې وروسته دافغان عسکرو دروزنې، مشورې او کابل حکومت د پیاوړتیالپاره کار کوي .

ناټو چې افغانستان کې یې خپل اوسني شتون ته دغوڅ ملاتړ نوم ورکړی او همدغه ماموریت یې دروان کال ترپایه پای ته رسیږي،اوس یوځل بیا پریکړه وکړه چې دغوڅ ماموریت تر بشپړیدو وروسته به هم دافغان حکومت سره خپلو ملکي او پوځي مرستو ته دوام ورکوي.

د ناټو سرمنشي استولټنبرګ د انتالیا ناسته کې وویل چې « موږ په افغانستان کې دغوڅ ماموریت تر پای ته رسیدو وروسته هم پاتېږو» .دغه رنګه سر منشي په خپلو احمقانه څرګندونو سره دافغانستان دکشالې دسوله ییز حل هڅې اوهیلې په لغته ووهلې، نوموړي وویل چې که طالبان اساسي قانون او دښځو حقونو ته درناوی ونه لري او دنړیوالو ترهګرو سره اړیکې ونه شلوي ( البته ددوی دتعریف له مخې) سوله ناممکنه ده.

د بهرنیو چارو افغان وزیر صلاح الدین رباني چې دافغان پلاوي مشري یې کوله وویل چې په یاده شوې غونډه کې دافغانستان سره د ناټو په دوامداره همکارۍ او ګډ کار موافقه وشوه، نوموړي دغونډې په تړاو یوې ناستې ته وویل چې د ناټو ماموریت دافغان عسکرو په تجهیز او پیاوړتیا کې پاموړ رول لوبولی دی،رباني په ډیري خوښۍ سره دناټو ماموریت ته دستراتیژیک مشارکت نوم ورکړ.

اسلامي امارت دناټو ددې اعلان په غبرګون کې چې د ۲۰۱۶ وروسته به هم افغانستان کې خپل پوځي حضور ته دوام ورکوي ویلي چې افغانان دیرغلګرو ځواکونو موجودیت که په هر نوم وي د یوې ورځې لپاره هم نه مني،اسلامي امارت په خپله اعلامیه کې ویلي چې ناټو غواړي په دې ډول اعلانونو سره خپل پوځیان د مجاهدینو له بریدونه وژغوري او خپل غلامان دمرګ کومي ته ورټېل وهي،د امارت په اعلامیه کې ویل شوي

چي داسي پلانونه تر لاس لاندي لري چي خارجيان به كه په هر نوم داشغال دبقا لپاره كار كوي په خپلو محفوظو ځالوكي هم ارام ته پرينږدي،په اعلاميه كي په صراحت سره ويل شوي چي مجاهدين اشغالگر بشه پيژني، ديرغلگرو د حضور سره مرسته كونكي كه په هر نامه فعاليت كوي او دافغانانو ضد جگړه كي په هره بڼه برخه اخلي دمجاهدينو دبريدونو هدف به وي.

دناټو داعلان څخه مخكي ددغه سازمان مهم او كليدي غړي امريكا هم ويلي وو چي نور يې په افغانستان كي نظامي ماموريت پاى ته رسولى خو اوس هم وخت ناوخت د هيواد په مختلفو سيمو كي دپخوا په شان چاپې وهي،بمباري كوي،خلگ بنديانوي او په عملياتو كي برخه اخلي .

ناټو چي د ۲۰۰۱ميلادي كال راهيسي يې دامريكاپه مشرۍ پر افغانستان يرغل كړى، د ډېرو زياتو بشري، مالي لوژيستيكي،ترانسپورتي اومحاربوي زيانونو سره مخامخ شوې ده، ددوى داعترافونو له مخي څه كم څلور زره عسكر يې وژل شوي، پنځوس زره يې معيوب شوي او ترډې زيات پوځيان يې چي خپلو هيوادونو ته ستانه شوي رواني رنځ څخه كړيږي.

همدا راز دافغانستان جگړې دناټو څخه په سلهاووبيليونه ډالر خوړلي،په زرهاوو ټانگونه،زغره وال موټر، ټانكرونه،كنټينرونه او بيلابيل نقليه وسايط يې دافغانانو بريدونو كي داور خوراک شوي او په سلهاوو چورلكي،الوتكي او بې پيلوټه طيارې يې را نسكوري شوې دي .

ناټو افغانستان كي دبې دريغه زور ازمايني او زر كاروني سره سره ونه توانيده چي افغان ولس اېل كړي او دلته خپل شوم پلانونه تطبيق كړي، د كټونكو په اند چي په څه كم يوه نيمه لسيزه كي ناټو دمخالفت په ټكولو برلاسې نه شوه په داسي حال كي چي د ناټو ترڼون څخه دباندي ځينو هيوادونو هم همكاري ورسره كوله، نوپه دې وروستيو كي چي حتى د ناټو ځينوغړو هيوادونه هم د افغانستان له جگړې پښې سپكي كړي او يو زيات شمېر يې اوس دبسترې په گولولو بوخت دي، ممكن نه ده چي ناټو د طالبانو په مشري دروان مقاومت په ځپلو كي دبريا چانس تر گوتو كړي .

ناټو دمعاصري يو قطبيزي نړۍ هغه يكه تاز نظامي بلاک دى چي رقيب وارسا يې دشلمي پيړۍ په اتيايمه لسيزه كي افغانستان كي سر بايلود، دوخت هر مستكبر او مغرور ته چي الله تعالى په قهر شوى افغانستان يې ورته قبر گرځولى دى، دسكندر، چنگيز، گورگين، انگريز او وارسا پر تابوت وروستي مېخونه افغانانو ويشتلي دي، همدغه وجه ده چي نړيوال افغانستان ته دامپراتوريو قبرستان وايې .

دتعجب او تاسف وړ داده چي ناټو اوس لا هم د وارسا په گور كي دبقا خوبونه ويني او دلته د خپلو موخو دپلي كولوخيال پلونه وهي،وارسا دلته تر ناټو ډير وفادار غلامان درلودل خو دافغانستان د مستعمره كولو خوبونه يې گور ته يووړل، نو ناټو چي په مراتبو تر وارسا په كمزوري وضعيت كي قرار لري دافغانستان د مستعمره كولو خيال پلوونه به يې بې له شكه په زوال منتج شي . ان شاء الله

لیکوال: (داسلامي نړۍ مفکرعالم مولانا سید ابو الحسن علی ندوي رَحِمَهُ‌اللهُ) ژ: ابوظهیر

# په اسلامي هېوادو کې داسلامیت او مغربیت ترمینځ کشمکش

## انډونیزیا...

دنویو ازادو هېوادو دننه د مغربیت اوجدیدیت په اړه چې کومه عامه رویه شتون لري، په هغې کې دحکومتي چوکاټ د نا اسلامیت او په اوس وخت کې په اسلامي قانون دنه عمل عقیده او دغربي افکارو او اقدارو دخپلولو عام رجحان لیدل کېږي! انډونیزیا ( چې نیږدې په سلوکې نوي وګړي مسلمانان لري) په دې اړه هېڅ کومه استثناء نلري، سربیره په هغه اوړده او خونړي کشمکش چې په دارالسلام کې دتحریک په حیث له کلونو راهیسې روان و او اوس یې ساه نیږدې په ختو ده! واکمنه ډله دپخواني ولسمشر ډاکټر احمد سکارنو په رهبرۍ کې کوښښ کوي چې دیو ټاکلي پلان لاندې دغه هېواد هم دترکېې په پل،پل واخلي ، په دې لړ کې مشهور امریکایې کتونکي لوئي فشر( Louis fisher)پخپل کتاب (THE story of indonest) کې په څو لنډو الفاظو کې دهغه مهال نقشه انځور کړې او دواکمنې ډلې دذهنیت یې ښه پوره ترجماني کړې:

یواځې غیر اشتراکي(Non – communist) مسلمان هېواد کوم چې دیو ژور کلتوري انقلاب څخه تیرشوی ترکیه ده، چېرته چې کمال پاشا اتاترک دهېواد دین( اسلام) منسوخ کړ، شرعي محاکم یې وتړل، دخلافت پای یې اعلان کړ،په پرده یې بندیز ولګاو او عربي رسم الخط یې ممنوع اعلان کړ، په مقابل کې غربي لباس یې دود کړ، لاطیني رسم الخط یې لازم کړ، عامه زده کړې یې پیل کړې، میرمنوته یې د رایې حق ورکړ دیکشنبې ورځ یې رسمي رخصتي کړه او ملت پالنې ته یې قانوني بڼه ورکړه.

هرچې انډونیزیا ده، هلته د دغو اصلاحاتو راوستو لپاره یوه بدلون ته هم اړتیا نشته؛ تردغه ځایه پورې په انډونیزیا کې مغربي انقلاب پخپله راغلی دی، دانډونیزیا جمهوریت نا اسلامي دی؛ اګرکه د۱۹۴۵ او ۱۹۵۰ اساسي قانون په جوړیدو په الله ﷻ عقیده ددغه هېواد اساس ګڼل شوې ، لیکن دولسمشر نه نیولې تر یوادنی دولتي څوکیدار لپاره دا ضروري نده چې هغه دي خامخا مسلمان وي؛ اونه دحکومت دکوم مامور لپاره ضروري ده چې دخپلې وفادارۍ لوړې لپاره دې دخدای په نوم یا دمحمد( صلی الله علیه وسلم) نوم واخلي هر سړی کولی شي چې ځانته دخپلې خوښې دین غوره کړي ا و په هغه عمل وکړي داساسي قانون په دوارو مسودو کې ازادې منل شوې ده.

دانډونیزیا د نااسلامي او نامذهبي جوړښت په وجه دخلکو یوه لویه او دپام وړ برخه یې مخالفه ګرځیدلې ، چې له امله یې دحکومت په خلاف داسې جنګ پیل شو ، کوم چې ددې جمهوریت ترټولو لوی او ترټولو زیات لګښت

لرونکی غلچکی ( GUERILLA WAR) جنګ ثابت شو، په عامه توګه د نامذهبیت دجواز لپاره دا دلیل وړاندې کولی شي چې په هېواد کې عیسایان هندوان اودنورو ادیانو پیرویان هم شتون لري،خو په حقیقت کې ددې اصل دلیل کوم چې په ژبه ډېر کم راوړل کېږي، هغه دادی چې هرنوی حکومت دهغه قرآن داصولو او لاربښوونو ته ځان تابع نه بولي، کوم چې دیارلس نیم سوه کاله وړاندې په محمد( صلی الله علیه وسلم)باندې نازل شوی، دویمه خبره داده چې قرآن مجید قانون پاته دی، نو ددې تشریح او استازي تاریک خیال علماء دي څوک چې په سیاست باندې دوړاندینو پیړیو خبرې نښلول غواړي، داندونیزیا زیاتره سیاسي ګوندونه او دفکر څښتنان دنوي عصر دذهن نامذهبي حکومت ملاتړي او ددې خبرې قایل دي،چې دیو مسلمان لپاره نامذهبیت غوره چوکاټ دی، په دې توګه زیاتره دمغربیت خپلولو فکر کړي.( THE STORY OF INDONESIA ۲۵۰-۲۶۰)

### ناځرګند غبرګون:

دتجدد،مغربیت او نامذهبیت (SECULAARISM)دغه ځرګند رجحان او فیصلې ترڅنګ اندونیزیا دسوکارنو په قیادت کې په ډېره تیزۍ دکمونیزم په لور ګام اخلي او کمونستو پوځي او انتظامي چارواکیو په پوځ او حکومت باندې دبشپړې قبضې لپاره کوم ناکام کوښښ وکړ، دهغه په غبرګون کې داندونیزیا مسلمان ولس اوپه خاصه توګه زده کوونکو کې د شدید غبرګون څپه راپورته شوه، چې په نتیجه کې یې هغه اشتراکي عناصر دپوځ او حکومت نه وایستل شول او ولسمشر یې دخپلو واکونو څخه بې برخې کړ ، ددې غبرګون یا ردعمل مثبت او ایجابي اړخ هم ښکاره نه دی، نشي ویل کېدای چې تجدد او مغربیت په کومه لار ه چې اندونیزیا په چټکۍ سره درومي ، په هغه کې څه تغیر راتلای شي؟ او داسلامي لرلید له پلوه داسلامي وښتابه تحریکونو تري کومه ګټه پورته کولی شي؟ دومره خبره ښکاره ده چې عسویت په دغه هېواد کې ځانګړې اسانتیاوې لري، اوهغه هلته په ډېره چټکۍ پراختیا مومي چاچې ددې هېواد په سلو کې نوي وګړو ته ستونزې او خطرونه زېږولي.

### نوي آزاد هېوادونه دلویدیځ په لار:

کومو ختیځو هېوادونو چې نوې ازادي ترلاسه کړې، هغوی دتجدد او مغربیت په هغه لار درومي، په کومه چې ترکیه کې کمال اتاترک قدم ایښی، داسې ښکاري لکه چې ټولو مشرانو او لیډرانو دمغرب فکري فلسفه دخپلو ټولو اقتصادي، سیاسي او کلتوري جهتونو سره یوځای منلې او هم یې دهغې د ملت پالنې مفکورې دنافذولو لپاره کلک هوډ کړی دی، هغوی دهغه اسلامي مزاج سره دکوم ښاخونه چې په هره خوا خواره دي،او دهغه اجتماعي، علمي او کلتوري چوکاټ( له کوم څخه چې زیاته ګټه اخستل کېږي، او دهېواد او قوم په ګټه کې له هغه نه فایده پورته کولی شي) سره په جنګ دي او دهغو معنوي او روحاني قوتونو سره یو ځای( کوم چې دسترو قربانیو دیني مصلحینو دبیمثاله اخلاص په مرسته ددې امت دوګړو او نسل په زړونو کې راسخ او ننوتی دي)سره په جګړه بوخت دي، او هغه دخپل طرزالعمل ، تعلیمي نصاب،تربیوي او اعلاناتو له لارې دقوم دهغه ایماني قوت، دیني جذبې په کمزورې کولو پسې دي، کوم چې له کارخانو او فابریکو څخه نه راوزي، او او ولولې پارونکووینا ووڅخه پیدا کېږي،هغه یواځې دانبیاوو، دتاثیر ، صحبت او دهغوی دځواکمن شخصیت او دهغوی دطرزر او نمونې مخلصینو او دعوتګرو له زیارونو څخه پیدا کولی شي، که خدای مکره انساني زړونو کې دهغه ریښې وچې شوي نو

رامنځته خلاء به يې هيڅ ملي شعور، سياسي وښتوب او دعلم او کلتور پرمختګ ډکه نکړای شي په تير وخت کې هم ايماني ځواک محير العقول کارنامې سرته رسولې، دکومو په اړه چې دپيړيو راهيسي بشري عقل حيران ګوته په غاښ دی، او دهغه دننه نن هم د خارق العادت ځواک اعجاز پټ دی، دهمدې ايماني قوت او دقربانۍ جذبې او دشهادت په شوق يې دسويز جګړه هم وکړه، دالجزاير اوږد خونړی جنګ وشو اود لس لکه انسانانو( څوک چې په جهادي جذبه سرشاروو) دهېواد ازادې او عزت ترلاسه کړ.

دا دتاريخ عجيبه غمېزه او دسياست يو نا اشنا ستم ليږدونکی ظرافت دی چې په هرهېواد کې ترڅو چې دازادۍ جنګ ته اړتيا وه، او دخارجي اشغال نه دازادۍ ترلاسه کولو دخلکو قربانيو، سرځارولو، جوش او ولولې ته ضرورت و، چې دخدای (جل جلاله) درضا، اخروي اجروثواب او داسلام دسربلندۍ پرته دبل هيڅ مقصد سره دلچسپي نلري ددين دژبې پرته دبلې ژبې سره اشنا نه وي او دمذهبي نارو پرته دهغوی ويني نه ګرميږي، او دهغوی په مغزو کې نيشه نه راځي،دازادې دجنګ مشران ددغې ژبې پرته په بله ژبه دخلکو سره خبرې نکوي، هغوی ددينې نارې له لارې دالله دنوم لوړولو او داسلام دسربلندۍ لپاره دالله(جل جلا له) داحکامو نافذولو په لالچ ورکولو خلکو ته داور نو سره د لوبيدو او په وينو او خارو کې دلت پت کيدو بلنې ورکوي او په همدې ايماني ځواک ( چې دهغه په مقابل کې لږترلږهد مسلمانانو پرته په بل ځواک کې نه ليدل کيږي)دازادې کلا فتح کوي، او ناقابل تسخير دښمن په سرټيټيولو مجبوروي خو څنګه چې ددغه ضروري پړاو طی کړې ، او هېواد اعلی واکمني ترلاسه کړي او دسياسي مشرانو په وينا:دهېواد او قوم دقسمت چارې دهغوی په لاسو کې راشي، هغوی هېواد دمغربيت او لادينيت ( سيکولرزم) په لار روانوي او ژرترژره ددين او ټولنې داصلاح او اسلامي قانون دتنسيخ او پکې دترميم او په غربي چوکاټ کې دهېواد غورځولو کارپيلوي اوپه دې کې له دومره عجلت اوشدت نه کار اخلي چې ځيني وخت هغه خلک چې بيدريغه قر بانيانې يې ورکړې داسوچ کوي چې دوی شايد تيروتي دي، او دهېواد ازادې د اسلامي ژوند او مذهبي ازادۍ لپاره دګتې په ځای مضر ثابت شي په ۱۹۲۴ زکې دترکيې نه نيولې ۱۹۶۲دالجزاير پورې دايو پرلپسې داستان دی چې پکې کومه استثناء نه ليدل کيږي او عربې هېوادونه په پوره عزم او اراده په جوش اوخروش دترکيې په قدم قدمونه اخلې دچا دواک په خلاف چې هغوی بغاوت کړی و، او دچا له سياست نه چې اوس عربان بيزار ښکاري.

**تونس**

په دغو نويو ازادو عربي هېوادونو کې ترټولو مخکې نوم دتيونس هم راځي، کوم چې په ۱۹۵۷زکال کې ازادې او خپلواکې ترلاسه کړېده، دتيونس لومړی ولسمشر الحبيب بورقيبه و، هغه دتيونس پشان په اسلامي جذبو مست اسلامي هېواد کې پخپل ټول توان او کوښښ دکمال اتاترک دجديدو اصلاحاتو لړۍ پيل کړه، دهغه ويناوې او ميلانات چې وخت په وخت په ورځپاڼو کې راځي، هغه په ښکاره وايي: چې نوموړی په تدريجي توګه خپل هېواد دترکيې په لار بوتلل غواړي، او دخپلې فرانسوي روزنې او کلتور سره سم نوی تيونس جوړول غواړي، په دې لړ کې ديوداسې محتاط فرانسوۍ ورځپاڼې اقتباس وړاندې کولی شي چې هغه ددې څخه انکاردی چې نوی تيونس دلادينيت په لور درومي

دپـــارس مشـــهورې ورځپـــاڼې(LE MONDE) دجنورې په ۲۹مه نیټه ۱۹۸۵زکال په ګڼه کې [ازاد تیونس د دریم کال په درشل کې] عنوان لاندې ولیکل:

ولسمشر حبیب بورقیبه دمیرمنو دشمېر په ازادۍ باندې محدودیتونه ولګول،( داد ۱۹۵۸ حال دا دی دهغـه وروسـته دمیرمنو دتعدد قانون لغوه اعلان کړ)هم يې خاوند ته دخپلې میرمنې لخوا دطلاق ورکولو قـانون منظـور کـړ، او یـواځې دنارینه لخوا دطلاقو ورکولو واک يې لغوه کړ( داهم د۱۹۵۸ خبره ده وروسته دنارینه څخه یـې دطلاقـو حـق واخیسـت محکمې ته يې ورکړ دهغه وروسـته خاونـد دطلاقـو ورکولـو مجاز ندی) په دې توګه يې دخاوند واکونه محـدود اومقیـد کړل دا کـورنۍ ازادۍ دسـیاسي او ټـولنیزې ازادۍ سره پـه یوځای کېدو دوه چنده کېږي، اوس میرمنوته درایې ورکولـو حق ورکړل شوی دی، او میرمنې دقانون جوړولـو مجلسـونو غړیتوب ترلاسـه کـولی شي دټولـو دولتـې ارګـانونو دروازې دمیرمنو په مخ بیرته دي، اوس مهال له سلو نه زیاتې میرمنې دپوهنې په وزارت کـې کـار کـوي او دوه نـیم زره پـه نـورو دفترو نو کې کارکوي او اووزره په مختلفو مؤسسو اونـورو رسمي ارګانو کې کار کوي.

تونس دترقۍ په دې میدان کې دقیادت او رهنمائۍ پیغام له کمال اتاترک نه اخلي او دهغه په قیادت کـې ترکیـې چـې کومه لار غوره کړې وه، تونس په هغه باندې په قدم اینبـودو سره اوس پرمختګ کوي پـه دغـه هېـواد کـې پـه ښـکاره او تیزۍ سره بدلونونه رامنځته شول پرده ( په خاصه توګه نوي نسل کې) کمه شوه، بیرون ته وتونکو میرمنـو شـمېر ورځ تـر ورځې زیات شوی، په سیاسي محفلونو کې هغوی دنارینه وو سره اوږه په اوږه لیدل کېـږي البتـه پـه اطرفـو کـې دترقـۍ روان بهیر ډېر چټک ندی

ولسمشر بورقیبه دغه بدلونونه په زبردسـتۍ دمسـلط کولو کوښښ ونکړ هغه دا خوښوله چې پخپله پریک شي او له بدن څخه پریوزي هغه ددې خبرې کلک تردید کـاو چـې هغه ګواکې په لادینیت عقیده لـري، یـا زیـات نـه زیـات پـه ښکاره الفاظو کې اسلام پریښـودل غـواړي، خـو هغـه برابـر دمغربي تمدن او دیني اقدارو ترمنځ دیوالي کوښښ کاو، هغه اکثر ددې ثابتولو کوښښ کاو چې اګرکـه دهغـه اصـلاحات دقرانی نصوصو تابع ندي، خو دهغه دروح سره منافي نـدي، له دې وجې دا ویل چې دتونس نوی لوری دکمالي فکـر پـه ځای مصري فکر ته نیږدې دی، څنګـه چـې پـه مصر کـې جامعه ازهر په ځای پرېښودل شوه په ورته توګه بورقیبیـه پـه تونس کې لویه مدرسه جامع زیتونیه په مخالفـت کولـو کـې هم احتیاط وکړ، خو دوه کاله وروسته يې دهغې دکار سـاحه تنګه او کارونه يې محدود کړل او په دې لګیا دی غور کوي چې هغه یواځې دیوداسې لیسې پـه توګـه یـې پریـږدې چـې دتونس پوهنتـون تـر څـارنې لانـدې دالهیـاتو زده کـړې تـه ځـانګړې وي(وګـورئ کتـاب المغـرب المسـلم ضـد اللادینیـة لیکوال ادریس الکتانی ۹۵-۹۶)

فروفیسر جوزف شاخت(Schacht) هم پخپله یوه نوې مقاله کې دنوي اسلامي قانون جوړولو په مسئلو کې دتونس ددغه ترقي خوښۍ او دتجدد په میدان کې پرمختګ په ډېره ښه توګه څر ګند اویاد کړیدي هغه لیکي:

بالاخر تونس په ۱۸۵٦ز کې قـانون منظـور کـړ، خپـل ځان يې هغو هېوادونو دقافلې مخکښ کړ ثابت کړ، کوم چې داسلامي قانوني جدت خوښونې په لور ګامونه اخلي.ترټولـو اول يې عامه اوقاف ختم کړل، او هغه يې دحکومت ملکیتونه وګرځول داکار يې دقانوني اهمیـت لـه پلـوه دشـام او مصر داوقافو دخاتمې نه ډېـر لـوی و، دویـم یوکـال وړانـدې یـې

دمصري قانون څخه په پيروۍ کولو يې دشرعي محاکمو هغه واکونه له منځه ويوړل دکومو لاندې چې روايتي اسلامي قوانين تطبيقيدل، دريم دتونس لپاره شخصي- احکامو (personal law) يو نوی قانون مجلة الاحکام الشخصية TUNISIAN CODE PERSONAL STATUS) (OF دمنظورولو څخه وروسته نافذ کړای شو، اګرکه دتونس دعدلي چارو وزارت په يو ليک کې ددې خبرې دعوه کړېده چې ددې قانون په جوړولو کې داسلامي قانون پوهانو ونډه اخستې ده، او هغوی خوښ کړی دی، اګرچې ددې قانون ځيني داسې اداري پخپل ځای پريښودي دي کومې چې دخپل نوعيت له پلوه خالص اسلامي دي، مثلاً مهر، درضاعت په بناء دنکاح حرمت، سربيره په دې چې دا قانون په فروعي مسايلو کې په تونس کې دواړو مستندو فقهي مذاهبو څخه ديوه اتفاق ضروري دی، خوبيا هم دکوم لرې تاويل دغه دوديز اسلامي قانون چربه ګڼل او دا ويل چې دا روايتي اسلامي قانون يو بدل شکل دی ، ناشونی دی، دتونس ډېرولويو علماوو کوم چې په محکمو کې دندې لري ددې قانون په خلاف يو فتوا صادره کړه په کومه کې چې هغوی ددې په کلکه مخالفت کړی دی، له هغو علماوو نه څلورو چې په هغو کې حنفي، مالکي دواړو مذهبونو ستر مفتيان راځي داحتجاج په تو ګه له سترې محکمې څخه مستعفي شول دا سهي ده چې دقانون هغه برخه چې دوراثت په اړه ده هغوی دوراثت په باب اسلامي قانون پرته دکوم بدلون څخه تغير کړی دی، چې دهغه وجه يقيناً داوه څو وانګيرل شي چې دتونس ټولنيز حالات دوراثت قانون په ښه توګه پوره کولی شي خو دنکاح او طلاقو قوانين داسې بدل شوې دي چې دهغو اوس هغه شکل نه پېژندل کېږي دمثال په توګه: تعدد ازدواج ممنوع ګرځول شوی دی، هغه يو جرم ګرځول شوی نکاح اوس دفريقينو په خوښه کېږي دطلاقو ورکولو واک يواځې محاکم لري، هغه په درې صورتونو کې ۱- دفريقينو څخه يو دهغو شرايطو په بناء دطلاقو غوښتنه وکړې کوم چې په قانون کې تعين دي ب – فريقين په طلاقو راضي وي ج – يواځې يوفريق دطلاقو غوښتنه وکړې په دې صورت ک به قاضي هغه پيسې تعينوي کومې چې دجبيرې په توګه دويم فريق ته ورکول کېږي په دې سره نه يواځې يو زوجيت او دطلاقو په باره کې ميرمن دنارينه سره برابره شوه بلکې په ضمني تو ګه دملکيت دهغو معاملاتو په باره کې هم کوم چې دنکاح نتيجه وي دا بعيده له قياس نه لرې نده، چې دتونسي- قانون دمسودې جوړونکوته به دخدابخش داندونو علم وي خو په دې کې شک نشته تونسي- قانون ددغه ډول خيالاتو نه متاثر دی دتونس دحل وعقد څښتنان که هراعلان هم وکړې دهغوی ياد شخصي- قانون که په معروضي ډول وکتل شي د دوديز اسلامي قانون څخه دومره جلا دی څومره چې دترکيې دسيکولر شخصي قانون دی.

نوربيا ...

# وقتت به کجا سپری می شود

## وچه کسی در آن تصرف می کند؟

نوشته: د. طارق السویدان
ترجمه: عبدالرحمن عزّام

واژه ی تنظیم وقت معنی درستی را افاده نمی کند چون به معنی اصطلاح انگلیسی ORGANIZATION TIME است، وقت طبیعتا از جانب پیدا کننده ی خود منظم است، کسی که سال، ماه، هفته و شب و روز را بوجود آورده است وقت را تنظیم نموده است. وقت از همه ی موجودات هستی منظم تر است، واحد های وقت مانند: ساعت، دقیقه و ثانیه؛ بلکه اجزاء ثانیه که امروزه تحقیقات به تجزیه ی ثانیه پرداخته و انسان را با یک هزارم و یک ملیونم (۱/۱۰۰۰۰۰۰) ثانیه آشنا می سازد؛ نیز به صورت کامل دقیق و حساب شده به پیش می روند.

**مفهوم مدیریت و تنظیم وقت:**

اداره در اصطلاح علم مدیرت به تنظیم و نظارت بر پدیده های مربوط به انسان یا متعلق به منابع مالی، اطلاق می شود. اگر این تعریف را درست بدانیم؛ آیا کسی توانایی تنظیم وقت را دارد؟ خیر، وقت قابل تصرف نیست؛ فلهذا قابل مدیریت، کنترل، اجاره، توقف و تبدیل نیز، نمی باشد.

**چگونگی تعامل با وقت:**

یگانه کاری که در تعامل با وقت می توانیم انجام دهیم، وفق دادن خود با وقت است نه وقت را به خود؛ انسان توانایی اداره و کنترل خود را دارد، می تواند با بیکاری وقت خویش را سپری نماید همچنانکه می تواند با بکار گیری توان و نیروی خویش از وقت بهره برداری نماید. یا به عبارتی دیگر می تواند وقت را با فعالیت و تلاش یا با کسالت، غفلت و خواب، سپری نماید.

قوه ی اداره، مدیریت و توانایی جسمی در خلال مدت زمانی مشخص که عمر نامیده می شود جهت انجام امور زندگی به انسان داده شده که می تواند با استفاده از آن به انجام کارهای مورد نظر خویش پرداخته و در طی آن مدت قادر به انجام امور ذیل باشد:

۱- در ظرف مدت عمر خود، کار و تلاش نموده و از وقت خویش به نحو احسن بهره برداری نماید تا سعادت دنیا و آخرت را بدست آورد.

۲- با ضایع نمودن عمر و گذراندن وقت به کسالت، تنبلی، کارهای لهو و لعب و دیگر امور منکر و نابجا، پشیمان دنیا و آخرت شود؛ خداوند متعال می فرماید: «حَتَّى إِذَا جَاءَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُونِ. لَعَلِّي أَعْمَلُ صَالِحًا فِيمَا تَرَكْتُ» [آن ها همچنان به راه غلط خود ادامه می دهند] تا زمانی که مرگ یکی از آنان فرا رسد، می گوید: پروردگار من! مرا باز گردانید! شاید در آنچه ترک کردم و کوتاهی نمودم عمل صالحی انجام دهم) (المؤمنون/۹۹-۱۰۰)

در حالی که این پشیمانی بحالش سودی ندارد.

امام شعبی رحمه الله تعالی می گوید: »ما بکیت من زمان إلا بکیت علیه.« (هیچگاه در خلال مدت زمانی گریه نکردم مگر اینکه بر خود زمان گریه نمودم؛ [نیز با ندامت و پشیمانی، اشک ریختم]) گریه سودی ندارد زیرا وقت از دست رفته است و ضیاع آن بر حسرت و ندامت آن می افزاید.

**چگونه به روشی فعال کارهای خود را برنامه ریزی نماییم؟**

انسان بیشتر با کار کردهای عادی و تکراری خود روبرو بوده و با




آنها در زند گی دست و پنجه نرم می نماید؛ به عنوان مثال: به اداره اش رفتـه و بعـد از انجـام وظیفـه بـه کارهـای خانـه بـاز مـی گـردد دوباره به دیدن خانواده، اقارب و دوستان می رود، سپس وقتش را به دفتر و قهوه خانه یـا در کنـار تلویزیون و روزنامه خواندن و دیگر کارهای روزمره ی زند گی می گذراند؛ این زند گی تکراری سپری می شود! اما آنچه مهم است اینکه: بـا انجام این امور چه چیزی بجـا گذاشته؟ چه چیزی برای خود، ملت و وطنش انجام داده؟ و در زمینه ی رشدش چه اقدامی نموده است؟

مرام و مقصد زند گی انسان این است که به مقام و جایگاه والای خود پی برده و شخصیتش را بشناسد، تلاش کند تـا اثر و یـاد گـاری از خود بجـا بگـذارد کـه یـادش را جاویـد و پاداشش را دوامدار نماید.

منظور مـا موقعیت، جایگـاه و عملکـرد انسـان نیسـت؛ بلکـه آنچـه مورد نظر است، انسانیت انسان است.

بیسـت در صـد از وقـت نسـبت بـه دیگـر اوقـات مهمتـر اسـت، پژوهشگران به این نتیجه رسیده اند که تقسیم وقت به اساس اولویت بندی کارها به قاعده ی (۲۰/۸۰) یعنی بیست در صد کار، سبب هشتاد در صد نتیجه می شود یـا به عبارتی دیگر هشتاد در صد نتیجه با استفاده از بیست در صد وقت بدست می آید.

در این حال این نسبت کوچک دارای بزر گ ترین اثر در زند گی است؛ اگر انسان بتواند به این بـاور برسد، بیست در صد از وقت در بهره دهی نمونـه‌ی غیـر عـادی اسـت، تـا جـایی کـه نتیجـه ی تحقیقات نیز به این موضوع تاکید نموده و به قانونی غیر قابل تغییر، تبدیل شده است.

در این هنگام باید دانست که فقط از جمله اعمال انسان بیست در صـد بسـیار حسـاس و مهـم انـد کـه بایـد ایـن قسـمت بـه واقعیـت ملموس تبدیل شود.

**تو با وقتت چه می کنی؟**

گاهی یک شخص با استفاده از شصت در صد وقتش به نتیجه ای دست پیدا می کند که دیگران با چهل در صد به آن نتیجه می رسند. آیا می خواهی مانند دیگران زند گی کنی؟ یا چنانچه خودت می خواهی؟

وقت ما برای مردم اختصاص یافته است، چقدر از وقت مـا ضایع می شود؟ عده ای از زن ها به پیمانه ای زیاد، وقت را ضایع می کنند. ناگفته نماند، هر چند تعداد مردم در جاهای کم درآمد افزایش یابد، تاجران خبره جهت بدست آوردن ثروت بـه راه های جداگانه و منحصر به فردی دست می زنند.

فلهذا متوجه باش که وقتت به کجا سپری می شود؟ چگونه ضایع شده و چه کسی آن را اداره می کند؟ هدف ما در این بحث، ایجاد راه هایی است که تو را متصرف وقتت بگرداند.

**تقدیم کارهای مهم بر امور دیگر:**

نکته اساسی در تنظیم وقت تقدیم نمودن کارهای مهم و ضروری بر دیگر امور است؛ زیرا از روی طبیعت پاره ای از علوم دارای عاید و فایده‌ی کم اند که متعلم جز اندکی بدان نیاز ندارد و گاهی هیچ گاه مورد استفاده قرار نمی گیرد؛ اما از طرف دیگر بعضی از علوم وجود دارد مانند ارتباط انسان با خداوند تعالی و ارتباط و علاقه ی انسان با انسان های دیگر، کـه مـتعلم منحیث یـک انسان لحظه بـه لحظه بـه آن نیـاز دارد و نمی تواند از آن بی نیاز باشد؛ و قابل ذکر است که بعضی از اعمال نیز وجود دارند که زیاد قابل پذیرش نبوده و دارای فواید کم و اندک اند که چندان نیازی بـه آن نیست؛ زیرا مشغولیت به خوب، گاهی انسان را از رسیدن به بهتر و مهمتر بـاز می دارد، بـه همین خـاطر شخص حریص بر تنظیم وقت و کسی که از وقت به نفع خود کار می گیرد، همیشه در علم و عمل بهترین ها را بر دیگر امور مقدم می دارد.

فلهذا انسان عاقل هر گاه امتیاز و برتری چیزی را دانست باید آن را انتخاب نموده و خاطرش را به آن مبذول بدارد.

خطیب بغدادی رحمه الله می گوید: «خود را در عرصه ی علم و عمل به موضوعات مهمتر و ارزنده تر مشغول دار؛ زیرا کسی که خود را به موضوعی کم اهمیت مصروف بدارد، موضوعات مهم را از دست می دهد؛ چون قسمتی از وقت را گرفته و توان و تلاشش را به خود مبذول می دارد، فلهذا باید برای کارهایش وقتی را در نظر گرفتـه و کارهـای مهم و مهمتـر را بـه میـزان ارزش آن درجه بندی نماید، بنابر همین ترتیب بندی و اولویت در کارها، ثمره و

بهره ای بهتر را به دست می آورد.«

ابوعباس علوی نکته ای ارزنده و جالب بیان می دارد:» عزیزم بدانکه فهم وعقل تو گنجایش درک همه اشیاء را ندارد؛ فلهذا توان عقلت را به موضوعات مهم اختصاص ده، و همچنین مال تو کفایت انفاق به همه مردم را نمیکند بنابرآن، مال خود را به مستحقین آن اختصاص ده.«

**ویژگیهای فردی انسان:**

هر مسلمان دارای ویژگی های خاص و منحصر به فرد خودش می باشد که ممکن نیست دو نفر در ذات خود به یک خصوصیت تطابق داشته باشند؛ از اینرو باید برای هر فرد بطور مستقل تقسیم اوقات روزانه و هفته واری جهت توزیع و تنظیم کارها و وظایف، با اولویت دادن نماز و کارهای مهم و لازم، و گنجانیدن امور دیگر مانند قرار ملاقات ها، درس ها وامور مشابه - که در زندگی انسان مسلمان به وفور یافت می شود -، وجود داشته باشد تا هر شخص بنابر ظروف و شرایط خود، کارهایش را به اساس آن تنظیم نماید.

**قواعد عمومی:**

پاره ای از قواعد عمده، اساسی و عمومی تنظیم وقت که قابلیت استفاده برای هر علاقه مند به تنظیم وقت را دارد، اینک قرار ذیل تقدیم می گردد:

۱ - متوجه باش تا وقتت مطابق به پلان روزانه و هفته وار به پیش برود و حتی لحظه ای هم ضایع نشود.

۲ - پیش از همه کارها به انجام فرایض و واجبات بشتاب و آنها را در صدر جدول برنامه هایت قرار ده!

۳ - همیشه نوافل را بعد از فرایض قرار داده و بر انجام آن مبادرت ورز.

۴ - برنامه های خود را با آزمندی زیاد بر غنیمت شمردن وقت و بدست آوردن منفعت، و مناسب با موقعیت خویش تنظیم و جابجا نما!

نکته اساسی و مهم در انجام قواعد مذکور، توزیع درست و دقیق وقت نسبت به بعضی کارها است که به ترتیب اهمیت شان، به اوقات مناسب تنظیم گردد.

آنچه از جمله قواعد مذکور می توانیم بشمار آوریم توزیع دقیق و درست وقت است؛ چون پاره ای از کارهای علمی نیاز بیشتری به ذهن فعال، تمرکز زیاد و مکانی مناسب دارند که سازگار با آن باشد؛ زیرا بعضی از کارهای علمی مانند: نوشتن، مطالعه های خفیف، قرائت های گذرا، و دیگر موارد مشابه که نیاز به دقت زیاد و تفکر عمیق و بیداری تمام عیار ندارند؛ ممکن است در هر زمان و مکانی انجام داده شوند. اما برخی دیگر از کارهای علمی، جهت بهره برداری بهتر و نتیجه ای خوبتر به زمان مناسب نیاز دارند که انسان در آن با نشاط و کمال علاقه مندی با ذهن و روانی آرام و آماده آن را فرا بگیرد؛ فلهذا لازم است که این اوقات ناب غنیمت شمرده شوند تا بتوان از آن استفاده ای بهتر و بیشتر نمود، طوری که این اوقات مناسب برای حل مشکلات دشوار، تهذیب مسایل در هم آمیخته و مختلط، تصحیح اصطلاحات غلط، نتیجه گرفتن از عبارات سخت و پیچیده، حفظ نصوص معتمد و مانند آن اختصاص داده شود.

**پایان:**

در پایان سخن ابراز میدارم: آنچه زیاد بر آن اهمیت قایل بوده و بیشتر تمرکزم بر آن است اهمیت وقت و جلوگیری از ضیاع آن است، تا به شکلی بهتر تنظیم شده و مورد استفاده بیشتر قرار گیرد. به نظر من انسان موفق، مثمر و مورد اعتماد کسی است که از وقت خود به نحو احسن استفاده نماید.





# کلوريني پاڼې

## رازونه

نظام کندهاري

چې مې په زړه کې پټ ساتلي وه د غم رازونه
وټول جهان ته کړل ښکاره د سترګو نم رازونه

دا کهکشان راسره درسته شپه پهساندو ژړل
لا هم پراته دي پر زړګي د صبحدم رازونه

لږ وکړه صبر اسرافيله شپېلۍ مه پو کوه
زه عرصات ته هم له ځانه سره وړم رازونه

دا بې تنې تکړې تکړې ګريوان ته سپک مه ګوره
پکې پراته به وي د مينې يو عالم رازونه

ليونی نه يم چې ترمه د باروتو احرام
ما ته معلوم دي دا د مينې د حرم رازونه

دا زولنې او دار لا څه دي چې ګواښېږي راته
زه خو لرمه د منصور غوندي محکم رازونه

شهيد آشنا په آخيري سلګو کې داسي ويل
چې هېر مو نشي- زموږ د وينو د زم زم رازونه

يو ورځ به نه وي دا ( نظام ) وي به ميلمه د لحد
يو د کاغذ پر مخ بې وينې د قلم رازونه

## شهادته!

فضل الرحيم بلال

زما زړه او زما ځان يې شهادته
تر هر څه را باندې ګران يې شهادته

ته زما د ژوند د لارې يو مشعل يې
هر مومن د زړه ارمان يې شهادته

لکه اوښکه د بڼو در پسې مات شم
لا په هيلو کې مې ځوان يې شهادته

لا ځلمې در پسې ګرځي تورو غرو کې
لوړ او چت لکه اسمان يې شهادته

زما روح دا ستا په غيږه کې رب واخله
ته محبوب لکه جانان يې شهادته

چا ته تريخ او چا ته خوږ يې بختوره
د بلال د زړه درمان يې شهادته

# عین او غین

عبدالستار سعید

نن مازدیگر د ښار په لوی جامع کې
چې ملا سلام واړاوو
او زه د نورو مسبوقینو ترڅنګ
وروستي رکعت ته لاړم
ناڅاپه کرنګ شو مسجد ولړزېدو
له دروازې سره د سوې کریکې غږ پورته شو
یوې مور سلګۍ وهلې
مسلمانانو یَوَزری زوی مې ورک دی رانه
امریکایانو رانه نیمه شپه له کوره وړی
نه یې بل ورور او نه یې پلار شته دی
دغه نجلۍ چې مې ترڅنګ ده دا یې مشره لور ده
نور نه غمخوار او نه پایوازی لري
پخوا یې کله کله حال راتللو
خلکو ویل پل چرخي کې دی او خلاص به شي زر
وخت یې پوره دی ، محکمې یې شوې
مګر د اڅو میاشتې یې بیا حال او احوال ورک دی
نه یې د ژوند نه یې د مرګ درک شته
نه یې کوم خط نه یې د بل چا په خوله حال راغلی
زامنو . . .
(مورکۍ سلګو واخیسته )
زامنو څه وکړم سوالګره نه یم
خو د ژوندي زوی یتیمان راپاتې
بې له الله نه بل یې هیڅوک د پوښتنې نشته
چې څه یې حال دی؟
مریضان دي؟
که نهر بیدیرې ؟
د مورکۍ کریکه نه وه ، سمه لکه صور شپیلۍ وه
مسجد یې ولړزاوو
زه یې له ځانه بیګانه کړم ناخبره له دې
چې په لمانځه یم دالله په لوړ حضور کې ولاړ
ژبه مې بنده او سینه مې شوه له غرېوه ډکه
نږدې و عین و غین بدل شي رانه

* * *

د عین او غین حکومت دی
تیاره اطاق کې د لیپ ټاپ رڼې ښیښې ته ناست یم
د پاچاهۍ له کیسو ځان خبروم
خبریال نوې سرېنده غږوي
وایي چې نوي پاچا
له پخواني پاچا د غچ د اخیستو په خاطر
او د بادار په دربار
د قبلیدو په خاطر
بګرام زندان یوخلې بیا په امریکا پلورلی
د ډکېدو لپاره
یې له څرخي پله د خلاصون په تمه ناست زندانیان
په ډلو ډلو دې وروړې بګرام بیا ډک شوی
بګرام پخوا چې په کلو په میاشتو نه ډکېده
دا ځل په څو ورځو کې
آن تر حلقومه په معصومو زلمو وپړسېده
زندان خپلي ،بې ګناه او برأت شوی زلمي
دا ځل د کور په ځای له سره بیا بګرام ته لاړل
بګرام په خیته موړ دی
بادار خوشال دی
غلام هم لکۍ په ناز اړوي
خو یوه سپین سرې مورکۍ
د جوماتونو له درګاوو سره چیغې وهي
او د پوړني په غلبېل پلو کې
د ژوندي ورک زوی یتیمانو ته خیرات غواړي . . .

د رجب اتمه ۱۴۳۶ هـ ق

مفتي راشد

# د شيخ الهند او مدني رح درې کارونه

مولوي محمد ميا صاحب چې يو ستر مؤرخ دی، د دوی تفصيلي تاريخونه يې ليکلي دي، ده د خپل کتاب اسيران مالټا په سپېڅليو پاڼو کې له تاريخ سره سره د هغه مهال د عالمانو درې مهمې پرېکړې رااخستې چې تاسو قدرمنو ته يې وړاندې کوم . هره يوه يې د دې حالاتو حق غوښتونکو ته مشال دی

او ل – د تَرکِ موالات فتوا « يعني له انګرېزانو سره دوستي او مرسته بندول

مولوي محمد ميا صاحب ( اسيران مالټا ٦٩ ٧٢ مخونه ) کې فرمايي : په هندوستان کې له انګرېزانو سره د اړيکو پرېښودلو (تَرکِ موالات ) مسأله تر بحث لاندې وه، د خلافت کميټۍ غړو د وخت له اړتيا سره سم حضرت شيخ الهند ته دغه استفتاء وړاندې کړه . شيخ الهندَ د دې جواب په خپله وليکلو، بيا وروسته همدغه فتوا د هندوستان د عالمانو د جمعيت له لوري په متفق ډول د پنځه سوه عالمانو له لاسليکونو سره خپره شوه. د شيخ الهند فتوا دا وه

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

قال الله تعالى :ولا تنازعوا فتفشلوا وتذهب ريحكم واصبروا إن الله مع الصابرين

الله تعالی فرمايي : او په خپل منځ کې اختلاف مه کوئ، چې بې زړه به شئ، او رعب به مو ختم شي، او تاسو بايد له ډېر صبر نه کار واخلئ، الله له صبر کوونکو سره دی

وتعاونوا على البر والتقوى ولا تعاونوا على الاِثم والعدوان - او تاسو بايد د نېکۍ او تقوا مرسته وکړئ، او د ګناو تجاوز مرسته مه کوئ

ومن يتولهم منكم فإنه منهم ان الله لا يهدي القوم الظالمين - له کافرو سره د دوستۍ په بيان کې د الله تعالی فرمان دی :او چاچې د هغوی دوستي او مرسته جاري وساتله، هغه سړی به هم له هغوی څخه شمار ېږي

په اورونو کې ور لوېږي دا کمزوری پروا نکړي که نور نه وي هر سړی خو دې د مينې اظهار وکړي

امابعد : نن په شرق او غرب کې په مسلمانانو باندې دقيامت په څېر د مصيبتونو غر رالوېدلی، تر دې چې دا انديښنه کېږي چې : د اسلامي خلافت بېړۍ به د رالوتي طوفان له څپو سره ټکر او( خدای مکه) توټې ټوټې شي . دهر مسلمان روح د مرګ ګواښونکو حوادثو له امله په ربړېږي. بلکه که پايلو ته ښه فکر وشي ، نو د آسيا هر اوسېدونکی خصوصا هر هندوستانی خپل اخلاقي جرأت او آزاد مستقبل په سخت خطر

کې ويني. د هند دعالمانو اکثر تعداد او دهندي ماهرينو تر ټولو لويه طبقه پدې کوښښ کې دي چې خپل جائز حقوق او ضروري غوښتنې پرېږدي چې تر پښو لاندې شي . کاميابي هر وخت د خداى په لاس کې وي، خو کومه فريضه چې په شرعي قومي او وطني حيثيت سره په کوم کس راځي نو ددې فريضې په ادا کولو کې لږ تاخير هم ستر جرم دى . زه په اصلي فطرت کې کوم سياسي سړى نه يم، اولکه څنګه چې زما دا اوږد ژوند شاهد دى چې زما نظر تل مذهب وي، او دا هماغه هدف دى چې زه يې له هندوستان نه تر مالټا (بنديخانې) او له مالټا نه يې بېرته هندوستان ته را ورسولم . له همدې امله زه د يوې شېبې لپاره هم له يوه داسې تحريک (غورځنګ) څخه ځان نه جدا کوم چې د ټول اسلام د کامپابۍ لپاره کار کوي ، يا د اسلام د دښمنانو د حربو په ځواب کې د خپلواکۍ د ساتلو لپاره کارېږي

چې له مالټا نه بېرته راغلم نو را تـه معلومـه شوه چې : د هندوستان د مسلمانانو مشرانو د خپلې فريضې د ادا کولو، او د خپلو جذباتو او حقوقو د ساتلو په نيت وروستۍ لاره غوره کړې ده، هغه دا چې دوى د قرآن شريف په يو صحيح او صريح تعليم او د رسول کريم صلى الله عليه وسلم يوه روښانه تګ لاره په کلک عزم سره را نيولې ده ، او د دوى هوډ دى چې : د قوم د ګټې او تاوان له موازنو او عواقبو ته په پوره کتنې سره به دا کار آخر ته رسوي – هغه کار دا دى چې : د اسلام له دښمنانو سره مرسته او دوستي عقيدتاً او عملاً پرېږدي

د دې مسئلې له شرعي حيثيت څخه انکار نشي کېداى، او پدې حالاتو کې د يوه رښتوني مسلمان د غيرت غوښتنه بايد همدا وي چې

۱ –حکومتي وظيفې او القاب پرېږدي
۲ –د هېواد په نويو ټولنو کې له ګډون نه انکار وکړي
۳ –يوازې د خپل هېواد مصنوعات دې کاروي
۴ –په حکومتي مکتبونو او پوهنتونو کې دې خپل بچيان نه داخلوي

**پدې شرط چې**

۱ –په شريعت باندې عمل وي

۲ –له افراط او تفريط څخه ځان وساتل شي ، او په اعتدال سره دې کار تر سره شي

۳ –د حضرت عثمان رضي الله عنه دا خبره په هر کار کې مفيده اوضروري وګڼل شي چې : (إذا حسن الناس فأحسن معهم, وإذا ساؤوا فاجتنب إساءتهم) چې کله خلک ښه کار کوي ، نو په ښه کار کې يې شريک اوسه، او چې ناسم کار کوي نو له بدۍ څخه يې ځان ساته . والله الموفق والمعين

العبد محمود حسن عفى عنه ديوبندي
۳ ذي قعده ۱۳۳۸ه

**دوهم: د جلا تعليمي ادارو پيل**

! اسيران مالټا ۱۳۳ مخ) : د تېر شوي ستر جنګ (جنګ عظيم) چې د۱۹۲۴م د جون په ۲۸ پيل تر ۱۹۱۸م ۱۱ نومبر پورې يې دوام وکړو، پدې ناورين او په دې کې د انګليسانو له بري نه وروسته، د انګليسانو ظلم اوستم دهندوستان په سياسي فضا کې خوزښت پيدا کړى وو، د خلافت مسئلې دا خوزښت نور هم تېز کړو، او ۱۳۳۹ه په روژه کې چې کله شيخ الهند رحمة الله عليه د مالټا له بندي خانې نه هندوستان ته راغى او له انګرېز سره د دوستۍ او مرستې د پرېکون فتوا يې صادره کړه نو دې خوزښت د زلزلې په څېر هندوستان ولړزولو

د همدې زلزلې له امله د علي ګړه د پوهنتون ډېرې برخې ونړېدې، طالبانو (شاګردانو) پدې پوهنتون کې له درس ويلو څخه ډډه وکړه، او په مقابل کې يې د مسلم نيشنل يونيورسټي په نوم بل پوهنتون جوړ شو، چې د پرانستلو د اولې غونډې مشري يې شيخ الهند په خپله وکړه

## د مسلم نيشنل پوهنتون د پرانستلو په مراسمو کې د شيخ الهند وينا

(اسيران مالټا ۷۴، ۷۵، ۷۶ مخونه) : د علي ګړه د پوهنتون طالبانو د پوهنتون ته له ورتللو څخه ډډه وکړه، او ديوه بل پوهنتون د جوړولو اراده يې کړې وه، شيخ الهند يې د پرانستلو د غونډې مشرۍ ته غوره کړی وو، د شيخ الهند مرض ډېر زيات شوی وو، خادمانو يې له دې مشرۍ او علي ګړه ته له تللو څخه په وار وار منع کړو، خو شيخ الهند ځواب ورکړ چې: که په غونډه کې زما له مشرۍ نه انګرېز ته تکليف رسي نو زه به غونډې ته خامخا حاضرېږم دا غونډه په ۱٦ صفر ۱۳۳۹ه ۲۹اکتوبر ۱۹۲۰م کې په علي ګړه کې تر سره شوه، د شيخ الهند د مشرۍ (صدارت) ليکل شوې بيانيه (خطبه) مولوي شبير احمد عثماني رحمة الله عليه ولوستله

## پدې وينا کې څو خبرې ډېرې د پام وړ وې

۱. ما پدې بوډاتوب، د مرض او کمزورۍ په حال کې ستاسو بلنې ته ځکه لبيک اوويلې چې: زه دلته د خپلې يوې ورکې متاع د پيدا کېدو په هيله يم، ډېر نېکان خلک وي چې: په مخونو کې يې د لمانځه نور او د الله د ياد رڼا څر ګېږي – خو چې هغوی ته اووايې چې: دخدای لپاره پاڅه او امت د کافر و له منګولو څخه وژغوره نو د هغوی په زړونو باندې وېره اوترهه راشي. دخدای وېره نه بلکه د څو ناپاکو هستيو وېره، او د هغوی د جنګ او ضرب د وسايلو

۲. ای د وطن ځوانانو! ما چې وليدلو چې زما د دې درد غمخواره (چې زما هډوکي داده پکې رژېږي) په مدرسو او خانقاوو کې کم او په مکتبونو او پوهنتونو کې زيات دي نو ما او زما څو مخلصو ملګرو يو قدم د علي ګړه خواته را واخست، پدې سره مونږه د هندوستان د دوه تاريخي مرکزونو :ديوبند او علي ګړه تر منځ تړاو پيدا کړو

۳. په تاسو کې چې کوم خلک محققين او باخبره دي، هغوی به پوهېږي چې: زما مشرانو کله هم د کومې پردۍ ژبې يا د نورو قومونو د علومو او فنونو په زدکړې د کفر فتوا ندی لګولې. هو، بې شکه چې دومره يې ويلي دي چې: دانګرېزي تعليم آخري اثر دغه وي چې عموماً په ستر ګو کېږي چې: خلک د (انګرېز) نصرانيت په رنګ رنګېږي، يا په ملحدانه بې حرمتيو د خپل مذهب يا مذهب والو ټوکې کوي، يا د وخت د حکومت پيروي کوي، نو له داسې تعليم حاصلولو نه يو مسلمان ته جاهل پاتې کېدل ښه دي

۴. رښتيا چې زمونږ د قوم مشرانو د اسلامي امت د يوه مهم ضرورت احساس کړی دی، پدې کې شک نشته چې که د مسلمانانو په عصري تعليم ځايونو کې شاګردان د خپل دين له اصولو او فروعو څخه بې خبره وي، او خپل قومي احساسات او اسلامي فريضې هېرې کړي، او په هغوی کې د خپل ملت او د خپلو قومونو حميت په ډېره کمه درجه پاتې شي – نو دا داسې احساس کړئ چې دا تعليم ځايونه د مسلمانانو د قوت د کمزوري کولو لپاره يوه آله ده. د دې لپاره دا اعلان شوی دی چې: يو ازاد پوهنتون دې پرانستل شي، داسې چې: د کار ټول نظام يې په اسلامي خصلتونو او قومي احساساتو باندې ولاړ وي

## دريم: له انګرېز سره په پوځ او پوليسو کې د کار په هکله فتوا

دا له نن نه ۹۷ کاله مخکنۍ فتوا ده، دا دهغه مهال فتوا ده چې: انګليسان په هندوستان واکمن وو، او افغانستان کې يې ماته خوړلې، خو د استعمار فکر يې لا ژوندی وو

دغه مهال په هندوستان کې د انګلیسان پر ضد تر ټولو لوی تحریک د هندوستان د ستر عالم شیخ الهند مولانا محمود الحسن رحمة الله علیه او دهغه د شاګرد شیخ الاسلام حسین احمد مدني رحمة الله علیه تر مشرۍ لاندې روان وو  د افغانستان پر محاذ چې کوم غازیان د انګرېز پر ضد په جهاد او د خپل وطن په دفاع بوخت وو ، هغوی هم له شیخ الهند او د ده له ملګرو سره یو مذهبي تړاو درلود، ځکه چې دواړه د یوه دین د دفاع لپاره د یوه دښمن پر ضد جهاد کولو خو سیمې یې بېلې وې

د دوی تر منځ تړاو دومره وو چې : کله شیخ النهد رحمة الله علیه وفات شو، نو امان الله خان په پغمان کې د ده د مړینې په هکله ستره غونډه جوړه کړه او په غونډه کې یې اوویل چې : کوم کار چې شیخ الهند شروع کړی وو، مونږ به یې پوره کوو

د افغانانو او داوسنۍ ملي اردو د ځینو ځوانانو کړنو ته چې ګورم نو حیا راځي چې داسې یوه فتوا ورته نشر کوو، خو دا فتوا کیدای شي هغو نورو ځوانانو ته لارښود شي چې : په لیکو کې شتون لري او له انګرېز یا کوم بل خائن نه د کسات کومه اراده نه لري او مسلمانان وژني

د کندهار په میوند کې چې کله د انګلیسانو او ایوب خان لښکرې سره مخ شوې د جنګ لپاره صفونه ودرېدل نو دغلته د انګرېز په لور کې د شیر علي خان په مشرۍ د ملي اردو کنډک هم ولاړ وو ، دې ځوانانو چې ولیدل چې وطنوال او مسلمانان ورونه یې هغه بل لور ته دي او دوی له انګلیس سره ولاړ دي ، نو دافغاني او ایماني غیرت رګونه یې وښورېدل، هغه وو چې ټولو دانګرېز صف پرېښود او له ایوب خان سره ودرېدل

دا فتوا پدې اراده نشروم چې : مسلمانان پوه شي چې دانګلیس په لاس په جوړ شوي پوځ یا پولیس کې دنده اخستل حرام دي، باید څوک ورنشي، او که څوک ورغلي وي ، نو د خپل کار په حرمت به پوه شي، یا به فورا او یا به له یوې سترې کارنامې وروسته را اوځي

شیخ الهند د هندوستان د دار العلوم دیوبند ستر عالم او مشر وو، او مدني رحمة الله علیه د ده شاګرد او له ده نه وروسته د ده پر ځای د دیوبند په ستر منصب فائز وو

### په اردو او پولیسو کې د کار په هکله د شیخ الهند فتوا

سید محمدمیاء اسیران مالټا ۱۳۳ مخ) : د هند د عالمانو د جمعیت د دوهمې غونډې مشري په خپله شیخ الهند وکړه، دا درې ورځنۍ غونډه په دهلي کې د۱۳۳۹ه د ربیع الاول په ٦ ، ۷ ، ۸ تاریخونو چې د ۱۹۲۰م کال د جولایي له ۱۹ ، ۲۰ ، او ۲۱ سره یې سمون خوړ تر سره شوه. د دې غونډې د پرېکړو د دوهمې مادې په پنځمه برخه کې دا خبره هم تایید شوې وه چې : د دین د دښمنانو په پوځ ( اردو ) کې کار نه کول، او هیڅ قسم پوځي مرستې هم نه ور رسول

له دې غونډې نه یوه هفته وروسته ۱۸ ربیع الأول ۱۳۳۹ه شیخ الهند رحمة الله علیه وفات شو، اوس نو د دې خبرې وضاحت کول چې : د دین هغه دښمنان څوک دي چې په اردو کې یې کار کول حرام دي؟ د شیخ الهند د ځای ناستي فریضه وه . د شیخ الهند ځای ناستی مولوي حسین احمد مدني رحمة الله علیه وو، هغوی په ډېر جرأت سره دغه فریضه تر سره کړه

### د شیخ الهند د فتوا وضاحت

سید محمد میا، اسیران مالټا ۱۳۳، ۱۳۴ مخونه ) : په کراچۍ کې(۱ ، ۲ ذي قعده ۱۳۳۹ه ، ۸ ، ۹ ، جولایي ۱۹۲۱م) د مولوي محمد علي جوهر تر مشرۍ لاندې د ټول هندوستان په سطحه د خلافت غونډه وشوه، چې په یوه قرار داد کې یې : په اردو او پولیسو کې کار کول حرام ګڼل شوي وو

د یو شي د حلال او حرام کېدو فتوا دیني عالم ورکولای شي، دغه مهال دیني عالم مولوي حسین احمد مدني رحمة الله علیه وو، د دوی له لوري دغه وړاندیز شوی وو، دا د دې غونډې شپږم قرارداد وو، مولوي محمد علي رحمة الله علیه دغه لیک خلکو ته ور واورولو، او وېویل چې: دا د غونډې د ټولو کړنو خلاصه ده . پیر غلام مجدد سندي دا سندۍ ژبې ته وژباړلو، او دا قرارداد د فتوا په صورت هم نشر شو، چې د مولوي حسین احمد مدني، پیر غلام مجدد، مولوي نثار احمد لاسلیکونه هم ورباندې وو دانگرېز حکومت له لوري دغه فتوا له دقانون خلاف وګڼل شوه، او د دې فتوا صاردوونکي او تاییدوونکي ټول ونیول شو

د کراچۍ د بند سړک (بند روډ) په خالق دینا صالون (خالق دینا هال) کې د دوی محکمه ۲۶ستمبر ۱۹۲۱م پیل شوه، او په ۲ نومبر ۱۹۲۱م فیصله واورول شوه چې: جګت ګرو دې پرېښودل شي، او نورو ټولو ته د دوه کاله بند سزا واورل شوه

له فیصلې اورولو نه مخکې انګرېز قاضي (جج) مسټر کینډي اوویل

شاید په مونږ کې داسې څوک وي چې د ترکانو په هکله زمونږ پرېکړه سخته او غیر منصفانه ګڼي، او هغوی دې ته ګوري چې ترکان (عثماني خلافت) له ډېرې مودې راهیسې د اسلام د مقدسو ځایونو ساتونکي وو، او دا هم امکان لري چې مونږ به له دې خلکو سره یو څه خواخوږي لرو، خو مونږه باید د تصویر بل اړخ هم اوګورو تورې چې څه ورکړي وو، اوس یې توره بېرته اخلي، او یو قسطنطین چې څه له لاسه ورکړي وو، بل قسطنطین یې لاسته راوړي

د فیصلې پر وخت د مولوي حسین احمد مدني رحمة الله علیه د انګرېز قاضي په مخکې په خپل لیکل شوي بیان کې وویل !د مولانا عبدالعزیز دهلوي د فتاوی په دوهم ټوک کې او د مولانا عبدالحي د فتاوی په درېم ټوک کې په ښکاره توګه ویل شوي چې: په انګرېز پوځ کې کار کول حرام دي. د دې زمانې په عالمانو کې د مولوي اشرف علي تهاونوي فتوا هم د هغه په کتاب کې همدا ده چې: په انګرېزي اردو کې وظیفه کول حرام دي. دا دهندوستان د ټولو عالمانو پرېکړه ده، او دا کومه نوې خبره نده

دوهمه وجه داده چې: د بیت المقدس د فتحې پر مهال دا ګلستان وزیر اعظم مسټر لامډ جارج ویلي وو چې: دا یو مذهبي جنګ دی، او مسټر چرچل هم دا صلیبي جنګ ګڼلی وو. پداسې حال کې که هر مسلمان د عیسایانو ملاتړ وکړي هغه یواځې ګناهکار نه بلکه کافر کېږي

د اسلام حکم دی چې: د مسلمان بادشا اطاعت د اسلام په چوکاټ کې د ننه کولای شي، تر اوسه چې ما څه ویلي هغه ټول په اسلامي چوکاټ کې داخل دي، او ستاسو د ملکې وکټوریا په اعلان کې هم، (هغې اعلان کړی وو چې: رعیت به مذهبي ازادي لري) نو که مونږ ته د اسلام له امله تکلیف را رسول کېږي نو ضامن به یې حکومت وي مونږه نه، او که د حکومت اراده وي چې مذهبي ازادي سلب کړي نو ښکاره اعلان دې وکړي، څو اوه سوه لکه مسلمانان پدې خبره فکر وکړي چې: هغوی د یو مسلمان په حیث ژوند غواړي که د حکومت د رعیت په حیث، همداسې دوه ویشت سوه لکه هندوان هم فکر وکړي چې هغوی به څه کوي، ځکه چې که مذهبي ازادي سلب کېږي نو د ټولو به سلب کېږي

او که لارډ ریډنګ د دې لپاره راغلی وي چې: قرآن وسوزوي، حدیث شریف ختم کړي، او د فقهې کتابونه برباد کړي، نو له ټولو نه مخکې په اسلام باندې ځان قربانوونکی زه یم پدې وروستۍ جمله باندې مولوي محمد علي ورته جزاک الله اوویل، او بیا یې د مولانا حسین احمد مدني رحمة الله علیه پښې ښکل کړې، او د پرېکړې د اورېدلو لپاره صالون ته ټولو راغلیو حاضرینو ورته: جزاک الله او مرحبا اوویل "مولوي سید محمد میا، اسیران مالټا ۱۳۳ ۱۵۲ مخونه# ۱۵رجب ۱۴۳۶ه

# پر اعدام دمحمدمرسي محکومېدل او دمصر راتلونکی

شهید زوی

دمصر دکودتايي رژيم دقاهرې فوځي محکمې دمصرپه تاريخ کې ترټولو ړومبی منتخب ولسمشر دوکتور محمد المرسي د مرګ په سزامحکوم کړ؛ په ۲۰۱۱ کې دزندان ماتولو په تور ښاغلي مرسي ددې سزاوړ ګڼل شوی .

دتيونس نه پس چې په مصر کې دستر وولسي پاڅونونو په نتيجه کې دحسن مبارک رژيم رانسکوراوبيا د۲۰۱۲م په اګست مياشت کې پـه ترسره شويو ولسمشريزو اوپارلماني دواړو انتخاباتو کې دالاخوان المسلمون پـه نوم هغـه اسلامي ګوند واک تـه ورسېدلوچې نېږدې له ۸۰ کلونو راهيسې ددولت دسخت جبراوتشدد ښکارو نودهېواد ولسمشر دمحمدمرسي په نوم هغه شخص وګرځېد چې زدکړې يې تردوکتورا رسېدلي وې اوآن دامريکاپه پوهنتونونوکې يې هم استاذي کړی وه؛ پـه مزاج کې يې ډېره عاجزي وه؛دنړۍ دترټولو کم معـاش اخسـتونکی ولسمشـرو؛ د ولـس دمشـکلاتوختمول؛ دفسـاد لـه منځـه وړل ،دعـدل اوپرمختـګ راوړل يـې يـواځنۍ هيلـه وه؛ دسيکولرمصرپرځای يې اسلامي مصرغوښتلواودلويديځ اواسرائيلونه يې دمصرلرى کول اواسلامي نړۍ تـه دورنېږدې کولولپـاره عملي اقدامات پيل کړي وو ډېره مهمه داچې کابينه يې کابوسل په سلو کې متخصصه وه.

داستربدلون نه امريکا ،نورلويديځ اواسرائيلو ته دمنلو وړو اونه هم داسلامي نړۍ شاهانواوديکتاتورانو ته نوځکه دهمدې امريکا، اسرائيلو اودسيمې شاهانواوديکتاتورانوپه لمسون اومالي مرستو په انتخاباتو کې مـاتې خوړلې ډلې؛ قبطي عيسويان اودغربي اين جي اوګانو کار کونکي دښاغلي مرسي ددولت پرضدلاروکوڅوته راووتل اولاکال نه وپوره چې دمرسي اداره يې په بې کفايتۍ اوپـه کړوژمنو نه ودرېدلو تورنه کړه چې دامريکااوداسرائيلودصهيونستي رژيم داسلام اومسلمانانوپرضدديوې پلان شوې طرحې دعملي کولوپه موخـه جنرال السيسي پـه ډېرې بېړۍ دولس دقـاطع اکثريـت دخوښې اورايې پـه نتيجـه کې رامنځتـه شوی داسلامپال دوکتورمحمـد المرسي قانوني دولت د۲۰۱۳ميلادي کال دجولائی په ۳مه نېټه ديوکال واکمنۍ وروسـته ړنګ کړ اوپرځـای يې دمسلمانانو دوژلو اوځپلولپـاره پخپله دواک په ګدۍ کېناست.

واک ته ديهودی النسله جنرال عبدالفتاح السيسي د رسېدوله همـاغی ړومبۍ ورځـی راهيسې هغـه دمسلمانانوپه نيولو، بنـديانولو شکنجه کولواو وژلو پيل کړی چې تر اوسه دوام لري؛ دده کودتايي اوپـر دي پـالې اداري پـه زرونو مسلمانان شهيدان کړي؛ پـه لسګونو زره يې ټپيان کړي اوپه لسګونوزره نوريې يواځې دمسلمانۍ اوداخوان المسلمون سره دتړاو يادخواخوږۍ په جرم زنداني کړيدي .

دمصر اجيری محکمې هم دمسلمانانودځپلوپه جنايت کې برابره ونډه اخستی ده؛ پـه پرلپسې ډول دمصر فرعوني رژيم دځپلو اسلام دښمنوتش په نامه قاضيانو په واسطه داخوان المسلمون په مشرانو، غړواوپلويانو ياداخوان المسلمون سره يواځې دتړاو لرلو اويالـه

دې امله چې تېر کال يې د السيسي د کودتا پر ضد دمصر دمسلمان ولس په اعتراضيه لاريونونو کې برخه اخستې وه داوړه دومودو لپاره دزنداني کولواواعدام حکمونه صادروي ؛چې په همدې لړ کې يې دمصر اصل قانوني اوبواځيني منتخب ولسمشر ډومبی پدې تورچې دخپل واکمنۍ پرمهال يې دمظاهرينو دنيولو اوسکنجه کولوحکم کړی وپه ۲۰ بندمحکوم کړ او اوس يې پرې دادی دزندان ماتولو په تور داعدام دسزاحکم صادر کړ.

له دکتورمحمد مرسي وړاندې داخوان المسلمون روحاني مشرپروفيسوردکتورمحمد بديع ، دده نائب دکتورخيرات الشاطر ، داخوان المسلمون مرکزي مشر دکتور محمد البلتاجی ، دمحمدمرسی داداړې دپارلمان منتخب ويناند دکتورسعد الکتاتنی اوداسلامي نړۍ ددينې عالمانو دتنظيم مشرپروفيسوردکتور محمد يوسف القرضاوي په ګډون ۱۰۶ مسلمانانان داعدام په سزامحکوم کړيدي.

دکتورمحمد يوسف القرضاوي چې په ۱۹۲۴م کال کې په مصر کې زېږيدلی دی ۵۰ کلونه وړاندې دمصر يوپخواني ولسمشر ناصر له هېواده ويستلی و؛ بيا دانور السادات اوحسني مبارک دواکمنيوپرمهال هم هغه ته مصر ته دراتلواجازه نه وه ور کړل شوې ؛ اوس چې په ۲۰۱۲م کې دمحمدمرسی په مشرۍ کې داخوان المسلمون واکمني راغله نوور ته دخپل پلارني ټاټوبي نه دليدنې اجازه ور کړل شوه اوهغه ته ايله ۵ لسيزې پس دخپل ټاټوبي ليدل نصيب شول ؛هغه ددولت په اجازې دخپل ټاټوبي نه ليدل کړي و اوبس ،شايد همدابه داسی سترجرم وي چې له امله يې السيسی دپخوانيوحاکمانونه هم لس قدمه وړاندې ولاړ اوداا ۹۰ کلن سپين ږيری عالم يې دمرګ په سزامحکوم کړ ؛ انالله وانا اليه راجعون.



دمصر دعدلې وزارت معين عادل الفهمی رسنيو ته ويلی دي چې دمصر محاکمو يوسف القرضاوي په مرګ محکوم کړيدی اوزموږدباندنيوچارو وزارت دقطر نه دوه ځلې موږ تـه دده دراسپارلوغوښـتنه کړيـده ، دااوس دقطر اخلاقي مسئوليت دی چې هغه اوداخوان المسلمون ټول هغه مشران چې موږ يې غوښتنه کوو موږ ته راوسپاري.

ددې سپين ږيري نړيوال ديني شخصيت پرضد شوې دوحشت نه ډکه پريکړه امريکا اوداروپااواسلامي نړۍ ټبردې ټولوهېوادونو غندلې ده اوداپې دانصاف له غوښتنوډېره لرې ګڼلې ده خوبياهم دمصر اداره له خپلې پريکړې نه وروسته کېږي اواصراريې دی چې دقضاپريکړه به تطبيقېږي.

په زړه پورې داده چې داعدام په سزا په محکومو شويو تنانو کې ۵هغه فلسطيني ځوانان هم شامل دي چې کلونه وړاندې پرغزې داسرائيلوپه هوايي بمباريو کې په شهادت رسيدلي دي ؛ له دې ۵ له جملې نه حسام الصائغ په ۲۰۰۸م کې شهيد شوی ؛ تيسير ابوسنيمه په ۲۰۰۹م کې اورائد الطيارپه ۲۰۱۴م کې په شهادت رسيدلی دی.

نودمصر د محاکمو دظلم اوجبر ترڅنګ دبې خبرۍ اوجهل داحال دی چې پکې مړي هم داعدام په سزامحکومېږي ؟!

له دې هم زياته عجيبه اودخنداوړخبره داده چې په محکوم شويومصري مسلمانانوکې يوشمېرهغه بې چارګان هم شامل دي چې جرم يې دالسيسی داداړې پرضد دتېرکال په اعتراضيه غونډوکې ګډون

ګڼل شوی حال داچې هغوئ کلونه وړاندې له دې نړۍ سترګې پټې کړيدي ؛ نومصردنړۍ يواځنی هغه هېواد دی چې پکې مړي جرمونه هم کولای شي اودمرګ په حالت کې دکړوجرمونوله امله يې ددې هېوادمحاکم په اعدامونوهم محکومولای شي .

دسينا ۶ اوسيدونکي تېره اوونۍ دمصرپه يوفوځي زندان کې پدې تورپه دار وزړول شول چې په سيناکې فعالې ډلې (( انصاربيت المقدس )) سره يې تړاو،واوپه فوځ يې په يو تازه شوي بريدکې لاس درلود .

ددې اعدامونوپه هکله دبشر دحقوقودساتنې نړيوالې ادارې (( ايمنستي انټرنيشنل )) ويلي دي چې داعدام شويوتنانودوسيې ډېرې کمزورې وې اودزور اوسختوسکنجو له لارې ترې اقرارونه اخستل شويدي اوبياپه دار زړول شويدي نوځکه بايد دادعدلې قتل وګڼل شي

ددې پېښې په اړه هيومن رايټس واچ اوايمنستي انټرنيشنل دواړونړيوالو ادارو ويلي دي    په فوځ باندې دکومې حملې په تورچې دا ۶ تنان اعدام شول په دوئ کې ۳ تنان لا ددې پېښې نه ۳ مياشتې وړاندې زنداني شوی وونوڅرنګه کېدای شي چې هم دې دوئ په زندان کې وو اوهم دې يې په فوځ حمله کړې وي ؟

ايمنستي انټرنيشنل اداره وايي چې دمرسي پرضدجوړه شوې دوسيه هم دې ته ور ته اوسراسرپه بې انصافۍ ولاړه وه .

محترمولوستوالو وګورئ ! مصرداسې يوهېواد دی چې پکې څوک په زندان کې شپې ورځې تېروي په همدې وخت کې يې دولت دزندان نه بيرون دترسره شوي يوسترجرم مرتکب ګڼي ؛ که څه هم داسې کېدل ناشوني وي خوبيابه هم ددولت خبره سمه ګڼل کېږي اودده پورې دتړل شوي همدې جرم له امله به هغه اعدامولی هم شي ؟!

ښاغلی مرسي چې په کومو دوه جرمونو تورن کړای شويدی هغه دواړه هم ښيخي داسې دي لکه ددې ۳ زندانيانوجرم .

ترکومه چې په ۲۰۱۱م کې دزندان ماتولوخبره ده نوپه هکله يې ايمنستي انټرنيشنل داسې وايي : دحسني مبارک دواکمنۍ پرمهال دکتورمرسي په زندان کې و؛ دتيونس نه پس په مصر کې ملي پاڅون رامنځته شواوچې زوريې واخستنت اوپاڅون کونکي غالب شول نودزندان عمله وتښتېده ؛يواځې زاندان نه بلکې دقاهرې په شمول په ټولو هغوښارونو کې چې پاڅون کونکي پکې غالب ووپوليس پکې په ستر ګونه ليدل کېدل نو کله چې زندانيانو دزندان عمله وليدله چې تښتي دمحمد مرسي په شمول ټول زندانيان هم له زندان نه راووتل؛ نه مرسي ، نه اخوان المسلمون اونه هم بل چا زندان مات کړيدی ياني دزندان ماتېدلو پېښه له سره رامنځته شوې نده نوپه کوم دليل پرې مرسي داعدام وړ ګرځول کېږي ؟

نوداهم دحيرانتيا وړخبره ده چې جرم ښيخي وجود نه لري خودمصر محاکمو کمال وګوره چې همدا معدوم جرم موجود ګڼي ؛ مرسي يې مرتکب ګڼي اودومره يې لويوي چې مرسي پرې داعدام وړبلي ؟!

ښاغلی مرسي په ۲۰ کلونوبند هم محکوم شويدی اوجرم يې داويل شوی چې مظاهرين يې تاوتريخوالي ته هڅولي و.

د تاوتريخوالي دکوموپېښويادونه چې شويده داد۲۰۱۲م په دسمبر کې هغه مهال رامنځته شوې وې چې ولسمشرمرسي دصدارت ماڼۍ کې و اودصدارت ماڼۍ نه فوځ راتاو وچې له امله يې دمرسي روابط له ټولې نړۍ سره شلېدلي وو؛بياچې کله فوځ ددولت همدې مخالفومظاهرينو کې مرسي ته دتاوان رسولوتوان وليدلونودصدارت له ماڼۍ وروسته شواومرسي يې هغه لاريون کونکوته پرېښودلوچې

له ځانوسره يې وسلې اولاسي بمونه راوړي ووئومجبوراًداخوان المسلمون غړي په تشولاسونودمرسي اوصدارت ماڼۍ دفاع ته راووتل چې ورباندی مخالفينوډزې وکړې اوګڼ تنان پکې شهيدان اوټپيان شول .

نوعجيبه ده چې تاوتريخوالی دمرسي دمخالفومعاهرينوله لورې رامنځته شوی وچې مرګ ژوبله هم ټوله دمرسي پلويانو ته رسيدلی وه خوبياهم مجرم مرسي ګڼل کېږي اوددې ناکړي جرم له امله په ۲۰ کاله بند هم محکومېږي ؟!

ايمنسټي انټر نيشنل وايي چې دسيسي اداري محکمې ته هيڅ داسې ثبوت وړاندې نکړ چې مرسی خپلو پلويانوته دتاو تريخوالي حکم کړی وي اويادده دپلويانو له لورې تاوتريخوالی رامنځته شوی وي .

دروان ميلادي کال داپريل مياشت کې دايمنسټي انټر نيشنل له لورې په خپور شوي راپور کې راغلي دي چې دمرسي پر ضد جوړه شوی دادوسيه له شرمه ډکه ده اوپکې دانصاف شکل په کلي ډول مسخه شويدی .

ديادولو وړده چې دمصرپه زندانونو کې دالاخوان المسلمون مشران او غړي اونور اسلام خوښي زندانيان سخت سکنجه کېږي چې دسختوسکنجوله امله په زندانونو کې دمسلمانانودشهادتونولړۍ هم اوس تېزه شويده ؛ تېره اوونۍ دمحمدمرسی دوخت دپارلمان غړی محمد الفلاحي په زندان کې دسختوسکنجو له امله په شهادت ورسېد ؛ له دې وړاندې دروانې مئ مياشتې په ۱۵مې نېټې داخوان المسلمون يومهم مشر اودمصر نامتوځېرونکی اومحقق فريداسماعيل دزندان عملې په وهلو وهلوپه شهادت رسولی و.

دوطن نيوزپه يو تازه خپور شوي راپور کې راغلي دي چې دمصرپه زندانونو کې پر اسلام خوښوله حده زيات ظلمونه روان دي اودتېر کال دجون نه تر اوسه پورې دمصرپه زندانونو کې دظلم اووحشت په نتيجه کې داخوان المسلمون ۱۳۵دلوړی اوټيټې پايې مشران په شهادت رسول شويدي خوددوئ په اړه هيچاته دڅېړنې اجازه نه ور کول کېږي .

دبشر دحقوقو نړيوالې ادارې هيومن رايټس ويلي دي: دمصر زندانونو کې په زندانيانونوډېر لوی وحشت روان دی خودوحشت کونکونه هيڅوک دپوښتنې نشته ؛ له دې داسې ښکاري چې داد السيسی د ادارې يوه منعمه سياسي کړنلاره ده .

په يو تازه خپور کړي راپور کې هيومن رايټس داهم ويلي دي چې دمصر امنيتي ادارې په زندانونو کې دښوونځوپه زده کونکو تنکوځوانانو اومېرمنوپه لوړه پيمانه جنسي تېري هم کوي ؛پدې بد اخلاقيو دالسيسی دادارې دمجرمانه چوپتيانه داسی ښکاري چې داهم دخپلومخالفينوپر ضد دسياسي پلان برخه ده

بس دالسيسی فکر دادی چې په لوړه کچه دخپلو مخالفينو په وژلوپه لوړه کچه يې دزنداني کولو اوپه لوړه کچه يې په اعداموکې دقدرت بنيانغښتې ده نوځکه يې دهمدې فکرعملي کولو ته ملې رانغښتی دي

دالسيسي دادارې اومحاکموعملي اسلام دښمني يوازې ترمصره نده محدوده بلکې ترکومه ځايه چې يې توان اوطاقت وي ترهغه ځايه خپله اسلام دښمني ښکاره کوي نوهماغه وچې کله يې دمصربې ګناه مسلمانانو ته په سزاګانو ور کولو زړونه يخ نه شول نودخپلو بادارانو دخوشالولوپاره يې دخپلې اسلام دښمنۍ لمن ترهغې غزې هم وروغزوله چې له هر لورې اسرائيلو محاصره کړی اودامید ستر ګی يې يوازې دمصر دمسلمانانو پر لوردي .

دالسيسي ادارې داجيرومحاکمودامريکا او اسرائيلو دخوشالولوپاره دحماس غورځنګ ترهګره ډله وبلله اوله نړۍ نه يې وغوښتل چې دترهګروپه لست کې دې شامله کړي نو همدالامل دی چې دمصرهوايي ځواکونه وخت ناوخت دفلسطيني مسلمانانو د رفح دسرحدي سيمې په خلکوچې په غزې پورتړلی ده بمباري کوي چې

تراوسه پکې په سونو مسلمانان شهیدان یا ټپیان شویدي ؛ پردې سربېره مصري ځواکونو په رفح کې دمظلومو مسلمانانو دهستوګنی ۲ سوه کورونه ړنګ کړیدي او د ۵ سوونورو د ړنګولو پلان لري.

غزه چې یواځې داسلامي هېوادمصر سره ګډه پوله لري او نورله ټولو اړخونو داسرائیلو په محاصرې کې ده نو دا ړتیا زیاتره توکي درفح له لارې دمصرنه راواردوي ؛ السیسي داسرائیلو په لمسون دیادو اقداماتو له لارې غواړي چې دغزې په باغیرته او سپېڅلو اوخصوصا په حماس دمحاصرې او اسارت کړی راتنګه اوله دې لارې یې داسرائیلو پرضد دمقدس جهادنه لاس په سرکړي ؛ څرګنده ده چې امریکا او اسرائیلو السیسي دهمدې هدف لپاره واک ته رسولی.

داهم څرګنده خبره ده چې په مصر اوغزې دواړوکې دظلم اوجبریواځنی هدف داسلام پالو دمبارزې ځپل دي خو مصري جابره اداره باید پدې پوه شي چې دجبر اوتشددله لارې دحق اوصداقت دمبارزې مخنیوی نه شوی اونه به وشي لکه چې دمصرنوروجابرو واکمنانو دا ارمان له ځانونو سره خاوروته یوړو السیسي به یې هم یوسي ؛حق اوصداقت به دظلم اوجبر په مقابل کې سرټیټ نکړي اویوه ورځ نه یوه ورځ به داقربانۍ رنګ راوړي

دکتورمحمد مرسي اګرچې دغلامومحاکمو له لورې داعدام په سزامحکوم شویدی او ورته دمدافع وکیل نیولو اجازه هم نده ورکړ ‌|شوی خوعملا‌|داسزاهغه مها ‌|ورکو ‌|کېدای شي چې دمصرمفتي اعظم یې تصویب کړي ؛ دمصرمفتي اعظم چې دولتي مفتي دی شاید دبدنامۍ نه دځان ساتنی لپاره داسزاتصویب نکړي خودا هم له امکان نه لری نده چې دولتي مفتي د دولتي قاضیانو په پل قدم کېږدي اودالسیسی دخوښی سره سم داسزاتصویب کړي چې بیا به ایله محمدمرسي ته درحم دطلب بې ګټې خواست پاتی وي چې شاید ویې هم نکړي.

خو پوښتنه داده چې که رښتیا هم مرسي ته داسزا ورکړ ‌|شي پایلی به یې څه وي؟

زیاتره شنونکي ددې پوښتنې په جواب کې دطبعي عکس العمل خبره کوي یانې داچې داخوان المسلمون سره یې تړاو وي اوکه نه وي دمصرټو ‌|اسلام خوښې به لاروکوڅوته راووځي چې دمصردسیکولر اوظالم فوځ له لورې به دسخت ظلم ښکارشي اوشاید دلسګونوزرومسلمانانو وینې توی شي نوکه دیکتاتور باندې دنړی فشارزیات شواو استعفاته ژرتیارشو بیابه دعبورې ادارې او ورپسې دانتخاباتو خبرې وي خو داسې نه ښکاري چې دقدرت له حد نه زیات وږی السیسی به ګېنی ژرواک پرېښودو ته تیارشي بلکې دده دظلم اوجبر لړی شاید ډېره اوږده شي چې پایلې به یې دټولی نړی دتمو خلاف وي.

داطبعي خبره ده نودشنونکو دا خبره بیخي پرځای ده خوددې کاریوه بله حتمي نتیجه چې ځوک ترې یادونه نه کوي څه یې یادونه ضروري بولم چې هغه په مصر کې ددولت ضد دوسلوا ‌|مقاومت پیلېد ‌|دي

محترمولوستوالوته به معلومه وي چې اخوان المسلمون یوعالمي دیني سیاسي تنظیم دی یانې دنړی په زیاترو اسلامي هېوادونوکې په مختلفونومونودې فکر ته نېږدې تنظیمونه شتون لري چې ټو ‌|دمصرداخوان المسلمون بانیان خپل سیاسي اوفکري امامان ګڼي ؛ داسلامي نړی په ځینو هېوادونوکې دوئ دانتخاباتو له لارې په قاطع اکثریت سره واک ته هم رسېدلی دي او په یوشمېرهېوادونوکې دې تنظیمونودخپلوهېوادونو ددولتونوپرضد وسلې ته هم لاس کړیدی خومصرچې ددې نهضت رېښې ترې ټولې اسلامي نړی ته خپرې شویدي

او د تېروکابو ۸ لسیزو راهیسې یې دهېواد دهررژیم له لورې له حده زیات سخت ظلمونه لیدلي دي ترا وسه یې د دولت پرضد وسلې ته ندې لاس کړې او یواځې په سیاسي ډګرکې خپله مبارزه مخ په وړاندې بوځې

خو اوس داسې ښکاري چې سیاسي مبارزه به نور په ځوان کو کې دوام ونکړي ؛ دامبارزه به یواځې ځوانانو ته پاتې شي ځکه چې له یوې خوا د مصرد دولتونو ظلم جبر اودنړۍ جفا د مصرځوانان د سوله ایزې سیاسي مبارزې نه ناهیلي دي او بل لورته د منځني ختیځ حالات هم اوس د تېرنه ډېربد دي




د مصر په ځنګ کې به فلسطیني ځوانانو د اسرائیلي جبرپرلور ایله ډېرې ورویشتلای شوې خو اوس د همدې فلسطیني مسلمانانو جهادي غورځنګ حماس په خپلو لاسونو په جوړو شویو توغندو د اسرائیلو ډېرې ښارونه په نښه کولای شي او د اسرائیلو په مقابل کې نه یواځې داچې ترکابو دوه میاشتو جنګ روان ساتلای شي بلکې ورته پدې اوږد جنګ کې شکست هم ورکولای شي او د ۲۰ نه زیات فوځیان یې هم وژلی شي ؛ زما اشاره د تېرکال دمۍ او اګست میاشتو کې پرغزې د اسرائیلو وحشي حملې ته ده چې تر۵۱ ورځو روانه وه؛ پکې د کوچنیانو او مېرمنو په شمو په زرونو بې ګناه مسلمانان ټپیان او شهیدان شو ټوله غزه په کنډوالې بدله شوه خو حماس ددې اتومي ځواک پرضد په ډېرې میړانې دفاعي جنګ جاري وساتلو چې پکې د اسرائیلو په وینا تر ۲۰ پورې اسرائیلي فوځیانو خپل ژوند له لاسه ورکړ نوشاتګ ته اړ شو

او همدا منځنی ختیځ چې به پکې چاد کوم دولت پرضد دډزکولو تصورهم نه شو کولای اوس پکې جهادي غورځنګونه دومره قوي شویدي چې د امریکا او برتانې په څېر ستروزبرځواکونو ته یې په عراق کې په اوږد لس کلن جنګ کې تاریخي شکست ورکړ؛ په عراق او سوریې کې د سترو ولایتونو په نیولو توانېږي ؛ په یویو یرغل کې تر ۵سوو پورې خپل مخالفین وژلای شي او نېږدې ده چې په لاس یې د عراق او سوریې په څېر هغه دولتونه سقوط وکړي چې ترشا یې سترزبرځواکونه ولاړ دي

که خدای مکړه د کتورمحمد مرسی رښتیاهم اعدام شي نوماته داسی ښکاري چې د قیادت باقي پاتې مشران به بیاهم د دولت پرضد جنګ اعلان نکړي خود ځوانانو د صبرکاسه به نوره ډکه شوی وي ؛سیاسي هلې ځلې به نورې بې ګټې بولي ؛ د منځني ختیځ د جهادي غورځنګونو کامیابیو ته چې ګوري نود خپلې ستونزې حل به هم په مسلح مقاومت کې ویني او همدا لاربه تعقیبوي

په منځني ختيځ کې نويوورا پيدا شويو جهادي نهضتونو چې د اشغالگرو او لاسپوڅو دوا ړو په مقابل کې لوى برياليتوبونه ترلاسه کړ نو اخوان چې په ولس کې ډېرې پخې اوزړې ريښې لري ډېره گرانه به وي چې د ولس د حمايت نه بې برخې د السيسى رژيم به يې په مقابل کې ټينگ شي

دا هم بايد له ياده ونه باسو چې د وسلوا پاڅون دا خبره به يوا ځې د مصرپورې محدوده نشي بلکې ټولې سيمې ته به خپره شي ځکه چې د اخوان المسلمون سره، تېرو ،روانو او متوقعو ظلمونو او وحشتونو د ټولې عربي نړۍ سياسي اعتبار د خاورو سره خاورې کړيدى ؛ يوا ځې د اسلامي يا عربي نړۍ خلک نه بلکې د نړۍ ټو باشعوره وگړي باورلري چې د واک نه د اخوان المسلمون لرې کولو او د اعدام تختوته رسولو کې د ټولې عربي نړۍ پوره لاس دى ؛ د مصرپه قصاب جنرا السيسى باندې چې د دې دومره ظلمونو سره سره هم د نورو عربو دولتونو مهرباني دوام لري دې د ټولې اسلامي نړۍ او خصوصا د عربي هېوادونو مسلمانان سخت ناراضه کړيدي چې د يمن په قضيې کې د نړۍ مسلمانانو د دې نارضايت عملي ثبوت وړاندې کړ؛ پدې قضيې کې عربي اتحاد د مسلمانو ولسونو حمايت ته سخت محتاج وو او د دې حمايت را جلبولو لپاره يې ډېرې هڅې هم وکړې خو پکې ناکام شو او د عامو مسلمانانو له لورې د حمايت او ملگرتيا هيڅ څرک ترسترگو نه شو ؛ د مراکش نه ترانډونيشيا په يوا سلامي هېواد کې هم چا ونه ليد چې د عربو د حمايت په موخه دې عامو مسلمانانو مظاهرې کړې وي او يا دې لاروکوڅوته راوتي وي ؛ په کوم هېواد کې چې کوچنۍ مظاهرې ترسترگو شويدي هغه هم د دولت پلووډلوله لورې رامنځته شوي او د حرمينو د ساتنى خبره پکې رامخې ته شوي وه ؛ که د حرمينو د دفاع خبره پکې نه واى چابه دا کوچني لاريونونه هم په سترگو نه واى ليدلي

**حقيقت دادى چې د عربو اکثروحاکمانو او دولتونو ته عام مسلمانان د سخت نفرت په نظر گوري ؛ عرب حاکمان بايد دا خيال له خپلو ذهنونو وباسي چې گيني خلک ټول د غفلت په خوب ويده دي ؛ دوئ بايد پدې پوه شي چې مسلمانانو د شعور او بيدارۍ پر لور يون پيل کړيدى او د شعور او بيدارۍ پدې زمانه کې هر باشعوره مسلمان پدې پوښتنې کې حق په جانب دى چې د يمن د خورافاسدې ادارې ولسمشر منصور هادي که له واک نه لرى کول جرم وي او حوثيان باغيان وي او بيا ته د منصور هادي واک ته رسول دومره اړين وي چې د عربو اتحاد جوړول او پر يمن هوايي بريدونه ور ته ضروري وو نو د مرسي د اسلام دوستې ،صالحې او قانوني ادارې بې رحمانه ړنگول د لسگونو زروبې گناه انسانانو وژل بنديانول مفلوجول او تر يتم کول ولې جرم نه گڼل کېږي ؟ او د بيا راوستلو لپاره يې کمزورې هڅې ولى نه کېږي ؟ که د حوثي باغيانو مرسته کونکي هم مجرمين دي نو د لسگونو زروبې گناه انسانانو قاتل جنرال السيسى حمايت کونکي او ورسره مرسته کونکي عرب حاکمان ولې پدې جرم کې شريک نه گڼل کېږي؟**

**که امريکا او نور لويديځ د السيسى نه په حمايت د دوه مخي توب ښکار کېږي نو لامل به يې اسلام دښمني او د السيسى په شتون کې د خپلو گټو خونديتوب وي ؛عرب حاکمان ولې پدې اړه د بې انصافۍ ښکار دي ؟**

**دا اوس د دې وخت دى چې عرب حاکمان پدې خبره ر ښتيني غور وکړي ، له خپلو تېرو کړنو توبه وباسي ،اسلام ته عملاً خپله ژمنتيا ښکاره کړي او د ټولوبې انصافيو ازاله وکړي ؛له دې پر ته به نه د مسلمان ملت او خپلو ولسونو حمايت ترلاسه کړي او نه به هم د خپلو واکمنيو په بقا و توانېږي .**

# دین

## (عقاید، عبادات ، تصوف)

داسلامي نړۍ ثقه عالم دوکتور محمد حمید الله رحمه الله

ژباړه: شهاب منصور

درسول الله (صلی الله علیه وسلم) مبارک ذات یواځې د خوش اعتقادۍ له لحاظه نه، بلکې له واقعاتي حیثیت نه هم ډېر زیات جامع شخصیت دی،دهغه د شخصیت وضاحت لپاره مؤرخ او سوانح لیکونکی دیته اړ دی چې مختلفې خواوې یې وڅیړي آنچه خوبان همه دارند توتنها داری د ټولو پخوانیو پیغمبرانو خصایل اوصفات د رسول الله (ﷺ) په مبارک شخصیت کې مندل کېږي

که مونږ د [نبي] لفظ دمعنی له لحاظه محدود کړو، چې نبي ددین ښودنه کوي، رسول الله (ﷺ) مونږ ته ددین ښوونه هم کوله اوکه یې پراخه معنی واخلو نوهغه ټولې کارنامې چې رسول الله (ﷺ) سرته رسولې دي، هغه ټولې دنبوي منصب څانګې یابرخې دې، دنبوت ټول ښاخونه یا برخې که مونږ جلاجلا راوړو ، نو په هغو ټولو باندې په یو مجلس کې رڼا اچول ناشونې ده، ښکاره ده چې په هغو ټولو کارنامو کې ددین تعلیم ته اولیت په برخه دی، ولې چې دهغې لپاره رسول الله (ﷺ) دبعثت نه تر وفات ټول عمر کوښښونه کول له نیکمرغه چې مونږ ته د دین په لړ کې دا یوه اسانتیارا په برخه شوې چې پخپله درسول الله (ﷺ) په وینا (یوحدیث) کې یې لنډېز راغلی دی: په یو روایت کې په صراحت سره راغلي چې دا پېښه درسول الله (ﷺ) د ژوند په وروستي کال وه، هغه داچې: یوه ورځ یوداسې اجنبي تن نبوي مسجد ته راغی، چې هغه هیچا نه پېژانده، د هغه په تن سپین کالي و، او دسر ویښتان یې بیحده تورو، هغه راغی د رسول الله (ﷺ) دزنګنوسره یې دخپلو زنګنونه و نښلول او کیناست ، وې پوښتل: اې محده! (ﷺ) ایمان څه شی دی؟رسول الله (ﷺ) یې تشریح وکړه! بیا هغه وویل تا ډېر رښتیا وویل، رواوي وایي: مونږ ټول خلک حیران شو چې داسړی څوک دی چې هم پوښتنه کوي، او هم دځواب توثیق پخپله کوي؟ بیا هغه دویمه پوښتنه وکړه: اسلام څه شی دی؟ رسول الله (ﷺ) اسلام تشریح کړ، په ورته توګه یې وویل: ته! سهي وایي؛ بیا یې وپوښتل: احسان څه شی دی؟ رسول الله (ﷺ) احسان تشریح کړ، هغه وویل: ته رښتیا وایي! بیا هغه وروستۍ پوښتنه دا وکړه،قیامت به کاله راځي؟ ددې په ځواب کې رسول الله (ﷺ) وفرمایل: دې باره کې ماته (ﷺ) له سایل نه زیات علم نشته، یعنې نه زه نه پوهیږم چې قیامت کله راځي اونه ته دقیامت راتلو په نیټه علم لري! یواځې خدای (جل جلاله) ته معلومه ده چې کله به قیامت وي؟ ددې وروسته هغه سړی پورته شو او بیرون ووت ... رسول الله (ﷺ) یوه صحابي ته وویل: ته ورشه وګوره داڅوک و؟ هغه صحابي ترشا پسي ورغی، لږه شیبه پس هغه بیرته راغی، وي ویل: له مانه ورک شو! معلومه مې نکړه چې هغه په زمکه ننوت او که اسمان ته وخوت، دهغه وروسته چې کومه واقعه وشوه، هغه په مختلفو روایتونو کې په دوه مختلفو طریقو راغلي ، په یو روایت کې دي: چې رسول الله (ﷺ) فوراً وویل، په بل روایت کې دي چې څو ورځې وروسته یې وویل: دا سړی جبریل (علیه السلام) و، چې تاسو ته ستاسو ددین ښودو لپاره راغلی و،په کوم روایت کې چې دادي: چې [څو ورځې وروسته رسول

الله(ﷻ) وويل]په هغه کې دا جمله هم اضافه ده، چې رسول الله وويل [تر ننه دجبریل(علیه السلام) په پيژندلو کې دستونزې سره نه یم مخ شوی چې هغه ما نه وي پيژندلی] په هرصورت په دې حديث کې د درې څېزونو په اړه وضاحت شوی دی ایمان څه دی؟ اسلام څه دی؟ احسان څه دی؟ دې درې خبرو ته په نور و الفاظو عقاید، عبادات او تصوف ویل کېږي، په ښکاره دا موضوع جالبه نه بریښي ، ځکه هر سړی پوهېږي چې دایمان څخه مرادی څه دی؟ الله یو مثل رسول الله مثل هم داسې دعباداتو په باره کې هر سړی پوهېږي چې لمونځ، روژه، حج، زکات څلورواړه څېزونه په مونږ فرض دي، ځيني خبرې دتصوف په باره کې هم هر سړي ته معلومې دي، خو که مونږ ددې څخه هر څېز را واخلو دنورو مذهبونو سره يې پرتله کړو نوپکې جالبیت پیدا کېږي.

اول ایمان او عقاید واخلئ، ددې ګڼ اړخونه، اجزاء او عناصر شته ،مثلاً: په الهي توحید باندې ایمان ، دالله له لوري په نازل شویو کتابونو ایمان،دهغه په رسولانو ایمان،په فرښتو ایمان، آخرت او دجزاء په ورځ ایمان، دخیرو شر په اړه چې دواړه دالله له لخوا دي ایمان؛ که مونږ دغه عقاید دنورو مذهبونو دعقایدو سره پرتله کړو نو داسلام امتیازي شان په نظر راځي،او داسې نکتې را ښکاره کېږي چې واقعاً مغو ته انسان حیران پاته کېږي، دعقایدو په لړ کې لومړی څېز په الله(ﷻ) ایمان دی، ځيني ادیان په دې قایل دي چې الله یو دی، او داخبره ښه په صراحت کوي ، حتی عیسویان هم؛ دچا په اړه چې عامه تصور دادی چې مغوی په تثلیث باندې د ایما ن لرلو په وجه یو نه بلکې درې خدایان مني؛ هم داسې فارسیان مغوی هم په یوه خدای دایمان اظهار کوي،په هندوانو کې هم ځيني فرقې شته چې مغوی په توحید ایمان لري، که مونږ غور وکړو نو ګورو چې دتوحید په اړه داسلام نظریه په نسبت دنورو ادیانو لاړښوونو ته زیاته معقوله، اسانه، او ډېره ښه ده، دمثال په توګه: عیسایان څنګه چې ما اوس وویل په تثلیث عقیده لري، خو که دهر عیسایي څخه وپوښتي او ورته ووايي: چې ته په درې خدایانو ایمان لري؟نو مغه سره به په جنګ واوړي، مغوی وايي مونږ یوخدای منو : پلار ، ځوی او روح القدس! دا درېواړه دیوه خدای مظهر دي! زه تفصیل ته نه زم، یوازې څو اشارې کوم چې دمغوی داوینا چې دتثلیث نه مراد توحید دی، دداخلي تضاد په وجه دمنلو وړ نده، په دې لړ کې یونیم کال وړاندې ماته دیوې عیسایي ټولنې لخوا داسلامي عقایدو په باب دلیکچر لپاره بلنه راکړل شوه،هلته زما دپیژندګلوی په ضمن کې یوه تن په ظاهره زما دپوهولو کوښښ کاو، چې عیسایان درې خدایان نه بلکې یومني؛ دهغه وروسته ما خپله وینا شروع کړه،او زما لپاره هغه ته ځواب ویل ضروري وه، نو ما ورته وویل: که واقعاً عیسایان یوخدای مني؛ نوپه سرستر ګو، خو عیسایان خپله په زیات ټینګار ادعاء لري چې خدای یودی؛ او بل پلو مغوی چې دامنت بالله په ځای کوم کلمات وايي په مغو کې داسې څېزونه بیان شوي دي چې مغه ددې تاید نه کوي بلکې تردید یې کوي غالباً تاسوته به علم وي چې څنګه مسلمانان په [ آمنت بالله وملائکته وکتبه ورسله] کې په ټولو ایمانیاتو باندې دایمان لرلو اقرار کوي، په ورته توګه عیسایان هم یوڅه شیان یادوي او په مغو ایمان لازمي بولي چې مغه دا دي: زه په خدای ایمان راوړم، او دخدای په یو سرځوی عیسی(علیه السلام) ایمان راوړم ،چاته چې دفلاني پاچا په زمانه کې سخت تکلیف ورکړای شو ی او سولی شوی، بیا مغه جهنم ته لاړ، درې ورځې هلته و، دهغه وروسته اسمان ته لاړ ، هلته دخدای ښې لاس ته کیناست او په راتلونکې زمانه کې به مغه بیا راځي، څو په زمکه کې دژوندیو او مړو حساب واخلي بیا دهغه وروسته ځيني نور داسې الفاظ دي: دغوښې او پوستکي سره یوځای به زمونږ حشر وي، ابدي ژوندبه مو په برخه وي، نو ما اشاره وکړه که دغه عقیده وي چې عیسی(علیه السلام) اسمان ته دختلو څخه وروسته دخدای په ښې لاس ناست دی! هیڅ شخص پخپل لاس نشي کینستلی! ددې معنی داده چې عیسی(علیه السلام) جلا دی او الله پاک جلا؛ مغه دخدای عزتمن میلمه کېدای شي چې دخدای په ښې لاس کیني خو پخپله خدای نشي کېدای؛ په دې توګه تاسو ګورئ چې دعیسایانو په اند دتوحید تصور ددې باوجود شته دی، خو دهغه په اړه چې کوم اظهار کوي مغه دمنلو او قبلولو وړندی بلکې پخپله خپل تردید کوي.

غرض داچې دتوحید په اړه دمسلمانانو تصور دومره اسان او دومره قوي دی چې په بل دین کې نه لیدل کېږي. همدا اوس ما دفارسیانو یادونه وکړه، زردشت هم دیوه خدای قایل و، خو ددې سر بیره مغه دثنویت یعنې د دوه خدایانو تصور درلود،

زردشت وايي: دبدی نسبت خدای ته نشي کېدای، نه يوائې داچې خدای پخپله بد کار نکوي، بلکې دبدو پيدا کونکی هم خدای نشي کېدای،دا دخدای دذات سره منافي ده، چې خدای پاک بد پيدا کړي، له دې وجې هغه وايي: دبدو پيدا کونکی جلا دی، او د ښو پيدا کونکی جلا ، په دې توګه هغه جلا خدای يا خالق دی، خو پوښتنه داده چې په دنيا کې زياتره وخت بدو ته غلبه په برخه شي، او نيکې شکست وخوري ګواکې دنيکی خدای مغلوب شي، ايا مونږ هغه خدای منلی شو؟ دعلمي لرليد له پلوه دغه ډول ستونزې چې ددغه ډول تصوراتو څخه پيدا کېږي هغه داسلامي توحيد په لارښوونو کې نشته، اسلام دتوحيد په عقيده ټينګار لري، چې دالله (ﷻ) پرته بل هيڅوک معبود نشته، يولورته کامله نفي ده، بل پلو داستثناء له لارې محدود کړی هم دی، چې يوائې يو الله دی؛ دا ټينګار په بل هيڅ دين کې نه ليدل کېږي، حتی ديهودانو په نزد صرف دومره ده چې خدای يو دی، خو دا کلک باور چې [ لا اله الا الله] دالله نه پرته بل هيڅوک معبود نشته، دا هغه ځانګړتيا ده چې ديهودو په دين کې هم نشته.

ددې وروسته دوهمه عقيده دفرښتو په اړه ده چې هغه هم زياترو اديانو قبوله کړې مسلمانان، يهودان عيسايان او فرسيان ټول په دې ايمان لري، چې دوخت دکموالي په سبب وربانديې بحث نشو کولی

ددې وروسته دعقايدو درېيمه برخه کتابونه دي، يعني زه دالله (ﷻ) په راليږلو کتابونو ايمان راوړم! دا دومره اهمه کلمه ده چې مثال يې مونږ ته په نورو اديانو کې په نظر نه راځي، ولې که دلته داويل کېدای چې [زه په يو کتاب ايمان راوړم!]يعني په قرآن مجيد؛ نويو ائې يو کتاب و، خو مونږ ته داښوونه شوې ده، چې په يو کتاب نه بلکې دخدای په ټولو نازل کړو کتابونو ايمان راوړل ضروري دی، په دې عقيده کې يولورته دنظر او زړه پراخې شته او بل لورته داسلام دنړيوالتوب او د پيل څخه تر قيامته دپاته کېدو تصور هم شتون لري، ولې که مونږ په کتابونو ايمان لرو، نو ددې معنی داده چې دادم (علیه السلام) نه نيولې تر محمد(ﷺ) پورې څومره کتابونه چې نازل شوي دي، هغه ټول دمختلفو خلکو ندي، بلکې زمونږ خپل کتابونه دي، مثلاً تورات ديهودو کتاب ندی، بلکې زمونږ کتاب هم دی؛ انجيل دعيسايانو کتاب ندی؛ بلکې زمونږ کتاب هم دی؛ دغه درس مونږ په نورو اديانو کې نه مومو، په عامه توګه دنورو اديانو منونکي وايي: چې نور ټول اديان غلط دي؛ هغه پرېږدئ، صرف زمونږ دين رښتيا دی،زه هم دمسلمان په توګه دا وايم چې زما دين رښتيا دی؛ خونور اديان هم دالله له لوري راغلی رښتينی دين دی، اګرکه اوس په هغو پخوانو اديانو عمل نه کېږي اسلامي حکم دادی چې دخدای (ﷻ) له لوري ليږل شوي کتابونه دخدای احکام دي، او په دې وجه زمونږ لپاره داحترام وړ دي،خو ددې اصولو په بناء چې په وروستي کتاب عمل کوو، او دهغه نه په وړاندينو کتابونو عمل نه کوو،خو منويې ضرور او ورته احترام لرو، ددې کار رواني ګټه دادهم ده، که زه يو عيسايي يا يهودي ته ووايم چې ستا دين غلط دی! ستا نجات په دې کې دی چې ته اسلام ومنې! تاسره چې کوم کتابونه دي، هغه ټول لغوه او دسېزلو وړ دي، نو په دې سره به هغه ټکان وخوري، غالباً دومره به دقهر او غوسې نه مغلوب شي چې داسلام دحقانيت په باره کې زما يوې خبرې اوريدو ته به هم غوږ ونه باسي خو ددې برعکس که زه هغه ته دا ووايم چې ستا دين رښتينی دی، ستا سې کتاب هم الله پاک راليږلی دی، هغه الله چې تاسې ته دا کتاب درکړی دی، هغه يو وروستی کتاب هم راليږلی، ته هغه ولولې! او پکې غور وکړه! هغه شايد په نسبت ستا وړاندينی وينا ته په خوښۍ سره دقرآن لوستو او پکې غورکولو ته تيارشي همداسې الله(ﷻ) په ټولو رسولانو باندې دايمان راوړو حکم کړی دی، چې ددينه هم دنظر دوسعت، تحمل او زغم سبق ورکول کېږي، ما په مسند احمدبن حنبل کې يو حديث لوستی دی کوم چې په نورو کتابونو هم شته چې يوځل رسول الله(ﷺ) وفرمايل: چې دادم(علیه السلام) نه واخله تر ارسول الله (ﷺ) پورې الله (ﷻ) يولک څلورويشت زره انبياء راليږلي دي، په هغو کې ۳۱۵ رسولان ، ګواکې ۳۱۵ صحيفې يې نازل کړيدي، پاته نور يولک درويشت زره شپږسوه پنځه اتيا پيغمبرانو دخپلو وړاندينو انبياوو په کتابونو عمل کړی دی، ښکاره ده چې دټولو پيغمبرانو زمانې او ملکونه له يو بل سره توپيرلري يعني دغه پيغمبران دنړۍ په مختلفو هېوادونو او مختلفووختونو کې راليږل شوي دي دهغوی ژبې ديو بل نه جلا او مختلفې وې وما ارسلنا من رسول الا بلسان قومه ( قرآن ۴:۱۴)

دپیغمبر منصب او مقصدپه باره کې که په لنډ ډول څه عرض کړم ښه به وي، ځکه چې په دې باره کې دمختلفو ادیانو ترمنځو یو څه توپیر لیدل کېږي، دځینو عقیده داده چې الله دانسان په قالب کې حلول کوي دکوم سړي دننه چې الله حلول وکړي دهغه سړي هر قول او فعل دالله قول او فعل وي، دویم تصور دادی چې الله خپل کوم غوره بنده ته خپل پیغام لیږي داپیغام هغه ته دمختلفو لاروڅخه رسي کله مخامخ دالله اواز ترهغه نبي ترغوږ ونو رسي لکه حضرت ادم (علیه السلام) او موسی (علیه السلام) په اړه راغلي چې الله (جل جلاله) دهغوی سره خبرې کړې کله داسې وې چې هغه پیغام یوه فرښته راوړي او انسان ته یې رسوي. دفرشتې لفظ فارسي مصدر دی فرستادن اسم مفعول دی یعې لیږل شوې ددې نه مراد هغه نوري مخلوق دی کوم چې دالله پیغام ترانسان پورې رسوي. په هغو فرښتو کې دا خامې نشته چې دپیغام کوم جز ترې له یاده ووزي، یا په هغه باندې په پوهېدو کې ترې خطاء را شي. فرښتې چې دخدای کوم پیغام راوړي هغه ته مونږ اصطلاحاً وحي وایو، پوښتنه داده چې وحي څه شی ده؟ کوم خلک چې مسلمانان ندي او په اسلام اعتراضونه کوي هغوی په وحي هم نیوکې کوي وایي: دایوه ناروغي ده، دتېرې پېړۍ یومشهور جرمنی مستشرق اشپرنګر دبرتانوي حکومت په مهال هند کې اوسیدلی و، هغه په طب کې زده کړې کړې وي، اوعربې یې هم زده وه، هغه په سیرة النبي (صلی الله علیه وسلم) باندې جرمني کې کتاب لیکلی دی، هغه دعربي ماخذونو څخه استفاده کړیده، خو دوحي په اړه هغه یوه ډېره خطاء او ناسمه رایه وړاندې کړېده دهغه په اند: وحي (معاذالله) یو ډول ناروغي ده، دوحي راتلو په اړه چې عربي کتابونو کې څومره روایتونه او معلومات راغلي چې کله به وحي راتله درسول الله (صلی الله علیه وسلم) مخ مبارک به سور او اوښت او رسول الله به په خولو کې ډوب شو، او دسکتې حالت به وربانديراغی، اشپرنګر چې په الهي وحي باور نلري ویلي: دا دمیرګي ناروغۍ نښې دي، خو ښکاره ده چې دهغه دغه رایه هیڅکه دیانتدارانه او پرځای رایه نده، هیڅکله سهي نده، او نه یې دوحي دکیفیت په اړه ټول معلومات رایوځای کړیدي، بلکې څو ځېزونه یې چې را اخستي دي، او دهغو په اساس وایې چې داد میرګي ناروغۍ نښه ده، چې دعلم او تحقیق دمعیارونو په رڼا کې دا رایه هیڅکله علمي او ددیانت رایه نده، هو! ما هغه رایوځای کړیدي په کومو کې چې دوحي دنزول په وخت کې دمختلفو صحابه وو څخه روایت شوي دي، مثلاً: یو صحابي وایي: مونږ لیدل چې فلانی ورځ ناڅاپه درسول الله (صلی الله علیه وسلم) حالت تغیر شو او دوحي نزول شروع شو، هم هغه وخت هغه کیفیت دڅو دقیقو وروسته ختم شو، او رسول الله (صلی الله علیه وسلم) پخپل معتاد بشري حالت ته راغی، داسې نور... داسې احادیث چې ما رایوځای کړیدي په هغو کې یوه غیر معمولي خبره داده چې ورته اشپرنګر اشاره قدرې هم نده کړې څه دا چې دهغې توجیه یا یې وربانديداستدلال کوښښ کړی وای هغه دادی چې هر کله به وحي نازلېده نو هغه ټول صحابه چې هغوی یې مشاهده کړیده وایي: چې دغه مهال به رسول الله دومره درونډ وچې دهغه دپورته کولو تحمل تقریباً ناشونی و، نو که رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به په کومه اوښه سپور و، هغې درسول الله (صلی الله علیه وسلم) وزن نشو زغملی اومجبوره به شوه چې کیني؛ که نه به کیناسته دهغې پښې به نیغې شوې او لړزه به یې پیل کړه، ګواکې نیږدې به وچې ماتې شې په یوبل روایت کې دي: چې یوه ورځ رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په مسجد کې ناست و، دخلکو ګڼه ګوڼه وه، حضرت زیدبن ثابت (رضي الله عنه) وایي: چې د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) زنګون زما په زنګون ایښی و، په دې خت کې په رسول الله (صلی الله علیه وسلم) دوحي نازلېدل پیل شول ما دومره بوج محسوس کړ چې وډار شوم چې هډوکی مې مات شول، که رسول الله (صلی الله علیه وسلم) نه وای نو ما به چیغې ویستې وې خپله پښه به مې لرې کړې وه ما ته تقریباً ناشونې وه چې درسول الله (صلی الله علیه وسلم) دزور لاندې تاب راوړای شم. څنګه چې ما وویل: ددې توجیه اشپرنګر په عبارت او وینا کې نشته ددې څخه علاوه نورو لیکوالو خیالات جنګولي لیکن هغوی په دې نکته چوپهخوله نیسي او ددې څخه دکومې نتیجې راویستو کوښښ نه کوي.

نوربیا




# از ماه رحمت چگونه استقبال صورت میگیرد؟

محمد اکبر موحد

ما در استقبال ماهی هستیم که بدون شک رحمت خداوندی از هر جانب آنرا پوشانیده است ,از رحمت بی پایان و بی حدو حصر خداوندی است که در طول سال هرگاه انسان به سویش رجوع مینماید شامل رحمت و مورد مغفرت خویش قرار میدهد و هیچ انسانی راکه با خلوص نیت به درگااش نیاز آورده نومید و مایوس باز نگردانیده است ,

خداوند(ج) با همه ای برکات فروانش در جریان ۱۲ماه ، بازهم ماهی را مختص به ماه رحمت ، مغفرت و خلاصی از آتش جهنم قرار داده است که هرشب وروز و هرساعت ودقیقه و هر لحظه آن آگنده با مهربانی ولبریز از بخشش حق تعالی است ,ولی آن ذات مهربان بر این همه بسنده نکرده بلکه شبی راکه بهترو افضلتر از هزار ماه است نیز در همین ماه پر برکت جاه داده است در حالیکه هیچ لحظه و ساعتی در طول شب وروزی و یا در جریان سال ، قرن و هزاره ی سراغ نمیگردد که مختص به غضب و قهر خداوند باشد وخداوند درآن لحظه عذاب عمومی را به روی زمین بفرستد که مانند رحمتش عام و بدون مداخله اراده وخواست انسان باشد , و چنانچه پیامبر (ص) میفرماید : خداوند (ج) هنگامی که مخلوقات را آفرید ، با دست خویش نوشت (ان رحمتی غلبت غضبی) رحمت من بر خشم من چیره است , به اساس همین رحمت است که با وجود کردار های زشت وزیادی بدکاران در روی زمین باز هم برای اهل زمین مهلت داده و دروازه های رحمتش را باز نگه داشته است ,

خداوند (ج) این ماه را همچو لقمه آماده برای استفاده ما انسان ها مهیا نموده است فقط وظیفه ما است تا آن را گرفته و صرف نماییم اما سیاهی گناه و آفت که درنتیجه پذیرش دستورات شیطان دل ها را تباه و عقل ها را مکدر نموده است نمیگذارد تا چنانچه شاید وباید از این ماه استفاده نماییم , وباوجود آنکه خود را بیشتر مستحق رحمت خداوند ج میدانیم ولی در ساحه عمل به همان اندازه از نزدیک شدن به این رحمت فرار مینماییم ,چنانچه استقبال از این ماه به اشکال مختلف صورت میگیرد ، استند بسیاری از جوانان ومردان کهنسال که فقط جهت گذشتاندن روز و فرار

رسیدن موقع خورد ونوش اوقات گرانبها وارزشمندشان رادر دهن دکان ها ، سر راها وسایر اجتماعات مبتذل و بیهوده سپری مینمایند ,کسانی نیز استندکه نیمه روز را به گشت وگذار در شهرها و جاهای دیدنی گذشتانده و نیمه باقیمانده را در خواب غفلت به آخر میرسانند , به همین صورت ، جوانان و نوجوانانی دیده میشوندکه به همرایی دوستان ورفیقان اجتماع نموده به اعمال چون :قطعه بازی وانواع مختلف قمار ، غیبت ، مزاح های فحش امیز پرداخته وبعضا با رفتن به سینما وتماشای فلم ها وسریال های غیر اخلاقی روزشان را به آخر رسانده وبا شنیدن صدای اذان دیوانه وار به دسترخوان حمله برده و مراد انتظار خود را با بلعیدن و نوشیدن درمیابند ,

در حالیکه ما شاهد تدویر چندین دوره های تفسیر قرآن کریم درجریان ماه رمضان در نقاط مختلف کابل استیم که همه این افراد بیکار میتوانند درین محافل شرکت نموده هدایت ، رحمت و مغفرت را بدست بیاورند , این هم ممکن است تا با خواندن قرآن ، سیرت پیامبر(ص) ،کتب فقهی و سایر منابع دینی و یالااقل با تکرار نمودن اذکار و دوام بر جماعت نمازهای پنجگانه و حفظ زبان ،چشم ،گوش و سایر جوارح از منکرات و منهیات این اوقات بیهوده و نابکار خود را با کسب بهترین پاداش به اوقات پربها تبدیل نمایند ,

نوع دیگر انسان ها به چشم میخورندکه نسبتا خوب و با ادب جلوه میکنند وگاه وناگاه به ادای نفل و قرائت قرآن میپردازند اما در خوردن و نوشیدن به حد اسراف مینمایندکه باقی مانده دسترخوان شان میتواند چند فامیل بیچاره و دربدر خیمه نشین و خرابه نشین را سیرنماید ،آنانیکه برای پیدا نمودن لقمه نانی به اطفال گرسنه خویش ، تهیه غذای افطاری و خوردن سحری شان را فراموش نموده اند و روز را جهت ادای فریضه خداوند (ج) و شب را برای زنده ماندن اطفال شان ،گرسنه و با حلق خشک پشت سر میگذرانند ,

از این فقراء ونادارن استند بلند همتانی که نمیخواهند دست گدایی را دراز نمایند اما چه بساکه به هر دراز پول داران مسلمان و هموطن و نزدیکان رجوع مینمایند ، اما هیچکس درین عصر که محور و مرکزیت داد وستد و اقتصاد را سود تشکیل میدهد ، حاضر نیستند بدون اخذ سود و موافق به دستور شرعی پول خود را در دست رس این محتاجین به طور قرض حسنه بگذارند , چه رسد به صدقه و خیرات که عوض مادی نیز ندارد , در حالیکه همین مردم پول دار درپر نمودن شکم به حد حریص اندکه در شوق تهیه انواع خوردنی ها و لذایذ ، هدف اصلی ازگرفتن روزه را بکلی از یاد برده اند , ودرین مسابقه خورد و نوش نمیتوانند کیفیت و تحول روحانی که سبب درک حالت گرسنگان و همدردی با ناداران و بی سرپرستان میگردد دریابند ,

البته خوردن غذای حلال که در حد اسراف نباشد ممنوع نبوده ، اما هدف اصلی رمضان نیز خورد ونوش نمیباشد , زیرا هدف اصلی چنانچه خداوند (ج) در قرآن کریم بیان نموده هدایت یافتن و با تقوا شدن است و پیامبر(ص)آن را به ماه رحمت ، مغفرت و خلاصی از دوزخ تقسیم نموده است , و تمام این اهداف و توقعات با رجوع خالصانه به درگاه آن ذات رحمان و پرداختن به اعمال که درخورشأن این ماه است برآورده میگردد , و خدای نخواسته نگردد که مصداق این حدیث قرار گرفته و در زمره هلاک شدگان محسوب گردیم , چنانچه پیامبر (ص) فرموده اند : جبرئیل (ع) فرمودند (خداوند هلاک بسازد کسی راکه رمضان بگذرد و وی هنوز درگناه باشد ، و من آمین گفتم ) ,

کفري نړۍ

# کفري نړۍ د مسلمانانو جرئت چلنج کړی!!!

لیکوال: محمد کمال افغان

کفري نړۍ د مسلمانانو جرئت چلنج کړی او هر کال یې د ایمان فیصدي معلوموي. له آره او پخوا د مسلمانانو او غیر مسلم کسانو ترمنځ دیني او مذهبي کرکه او نفرت شتون درلود، لړي یې او تر قیامت ورځې پورې به دوام کوي. خو نن سبا وخت ناوخت کفري نړۍ مسلمانانو ته حیلې او بهانې جوړوي او په بېلابېلو نومونو او لاملونو یې زوروي او د مسلمانانو پر هېوادونو سیاسي، اقتصادي او نظامي او بالاخره عقیدوي یرغلونه کوي، چې ښکاره بېلګه یې زموږ ګران هېواد افغانستان، سوریه، عراق او داسې نور هېوادونه دي، چې تر کفري تسلط لاندې دي او دغه لړۍ به تر هغې دوام کوي، څو مسلمانان د دوی د دین او ملت پوره تابعدار شي او د دوی هر اړخیزه غوښتنې ومني، خو په دې کې مسلمانانو ته ډېر لوی ایماني او وجداني خطر دی، چې هغه د دین بدلول په دنیا دي. کافران هر کال د مسلمانانو د ایمان او اسلام فیصدي کچه ازمائي او د مسلمانانو جرئت چلنجوي، هغه داسې، چې هر کال د اسلام او مسلمانانو پر ضد یوه نوې برنامه پلې کوي، لکه کله د قرآن کریم سپکاوی، کله د پیغمبر کاریکاتور رسمول او کله د مسلمانانو په مال، ځان او اولاد ظلم کول. لکه نن سبا چې برما کې کوم بد حال د مسلمانانو دی. عزتونه یې لوټ شول، مسجدونه او مدرسې یې ړنګې شوې، ژوندي جسدونه یې تر خاورو لاندې او وسوځول شول، واړه ماشومان یې د دوی په مخکې اور ته واچول شول، په تېرو وویشتل شول، ګوتې یې په تبرونو پرې شوې او داسې نور ظلمونه. خو له بده مرغه کم شمېر مسلمانانو د همدردۍ اواز پورته کړ او د ایمان او اسلام قوت یې کفري نړۍ ته وښود، چې باید له دغه ظلم څخه لاس په سر شي، چې هغه هم د ځینو په نوم مسلمانانو له لوري رټل کېدل، چې د غفلت په خوب ویده او چوپه خوله لاس تر زنې ناست دي د خپلو مسلمانانو د بدبختیو ننداره کوي او وایې زموږ غمونه کم دي، چې اوس وار د برما شو، خپل غمونه چاته یوسو او د زړه غوټې چاته وسپړو! دوی هم د نړیوالو رسنیو په څېر د بودیانو او غیر مسلم کسانو په جرمونو څادر هواروي، د کفري نړۍ په پیسو مست بشري حقوق پالونکي چپ دي، مذبذبه مدني فعالان لادرکه دي، ملګري ملتونه او نور بشري سازمانونه غبرګون نه ښیې. خو آی مسلمانانو! نن ستاسې د ایمان او اسلام د ازمایښت شیبې دي، اسلام سرحد او پوله نه لري او پورته شئ د خپلو مسلمانانو ورونو او خویندو د عزت او حیا شمله او پړونی مه پرېږدئ، چې د خاورو سره خاورې شي او دا بې عزته قوم پرې لوبې وکړي. لږ فکر وکړئ، چې ولې د مسلمانانو حالت ورځ تر بلې مخ پر خرابېدو دی؟ لامل یې څه دی؟ لږ فکر وکړئ، چې یو مسلمان پر بل مسلمان څه حق لري؟ د مسلمانانو د اتحاد او اتفاق لارې چارې لټول او هڅې کول د چا دنده ده، حکومت، رعیت، امي، عالم او که د ټول مسلمه امت؟ څوک د اسلام ټیکه داران دي او څوک پر اسلام او مسلمانانو سر ورکوي؟ په برما او ټوله اسلامي نړۍ کې وحشت او ظلم د چا له لوري کېږي او څوک یې ترشاه لاس لري؟ د دغه وحشت او ظلم مخنیوی څنګه امکان لري؟ که موږ مسلمانان په خپلو خویندو او ورونو غیرت ونه کړو، نو څوک به یې کوي؟ کله مو هم د

اسلام او مسلمانانو په اړه فکر کړی؟ که ټول عمر د خېټې غم دی او موټر او تاسې یو؟ که دغه ټولې پوښتنې خپلې مخې ته کېږدئ، شاید په خوب مونډلو یې برلاسي شئ!. زما په نظر د دغه ټولو مصیبتونو، غمونو او اندېښنو ختمولو لپاره په واقعي توګه په اسلام عمل کول دي او قرآن خپله تګلاره او ستراتېژي جوړول دي، نه د غربي ډیموکراسي. د نړۍ د هر ګوټ مسلمان ته د خپل ورور او خور په سترګه کتل، د هغوی غم او ښادي خپل غم او ښادي ګڼل، د معنوي پولو او سرحدونو ورانول، ځکه په اسلام کې سرحد نشته، نو د نړۍ د ټولو مسلمانانو ځخه به یو قوي او غښتلی قوت داسې جوړ شي، چې:

۱ —یو شمېر اسلامي هېوادونه شتمن دي، لکه سعودي عربستان او ټول متحد عرب امارات، شتمني دې د دوی وي.

۲ —یو تعداد اسلامي هېوادونه اټمي قدرت لري او پرمختللې عصري وسلې لري، لکه پاکستان او ایران، وسلې دې د دوی وي.

۳ —یو شمېر اسلامي هېوادونه غوره نظم او دسپلین او عسکري نظام لري، لکه ترکیه، نظم او عسکري سیستم دې د دوی وي.

۴ —او افغانستان په ځېر هېواد بیا که وسلې، شتمني او عسکري سیستم نه لري، خو پیاوړي، زړور او با شهامته ځوانان او جنګیالي لري، جنګیالي دې د افغانستان وي.

په دې کې نور اسلامي هېوادونه هم کولای شي بېلابېلې برخې واخلي لکه عسکري برخه، اقتصادي برخه، صحي برخه او یا د وسلو له پلوه، نو هغه دی، چې د نړۍ په کچه به یوه پیاوړې قوه جوړه شي او هېڅوک به بیا د مسلمانانو او اسلام د تخریب او اذیت لپاره هڅه ونه کړي او حتی فکرونه به له سره وباسي، ځکه مسلمانان به دا مهال تر بل هر چا زړور وي.



# دظلم سیلی

**شاعر: اسدالله رزین**

۱ -داد کوم ظلم سیلی ده داد کوم وحشت غوراده
داد چا په کلي ګډه داله کوم لوري دریاده

۲ -لایې نه ده زړه سوړ سوی چې غړمبېږي
را وتلې د بربرله کوره بیا کومه بلا ده

۳ -بس کیده نه لری سترګې یی چپه دي
په هر لوري کې ماتم ویرده ژړا ده

۴ -دلته نه ده په هرلور غم غوړیدلی
په انسان را ګرزیدلي ځوریدا ده

۵ -داچې ولي او په څه ګناه یی وژني
د صلیب زړه کینه د یهودانو په سلا ده

۶ -دد هشت ډول تری ورک ده چې څه وکړي
را ایستلی د هر څه کړلو فتوی ده

۷ -استنادیی د ترور په کارنامه ده
لیکل سوي په سروونو کربلا ده

۸ -دا بیا دوی خوري دا انجام د هر جنون ده
د تاریخ دا فیصله بیخي رښتیا ده

۹ -له نمروده رارهي سه څوچې تلای سې
دغوماسې نیش کې زور داژده هاده

۱۰ -لیر فرعون او ابوجهل در په یادکړه
دا انجام د هر جابرد ناروا ده

۱۱ -چې دعقل لاس وروتړی نشه سې
انسانیت سره بدی ده او جفا ده

۱۲) -رزین) نه وایی رښتیا دغسې وایې
د ظلمونو داستان لنډ ذلیل رسوا ده

رزین

# سلام واهمیت آن ازدیدگاه اسلام

محمد عثمان (علمی)

قرآنکریم میفرماید : (واذا حییتم بتحیته فحیوا باحسن منها اوردوها – ان الله کان علی کل شیء حسیبا) (ایه ۸٦ سوره نساء) معنی لفظ تحیه به کسی (حیاک الله) گفتن است، یعنی الله تورا زنده نگهدارد. پبش ازاسلام عادت عرب چنان بود که وقتی یکدیگررا ملاقات میکردند به همدیگربوسیله الفاظ (حیاک الله) یا (انعم الله بک عینا) یا انعم الله صباحا وغیره سلام میدادند. اسلام این طرزتحیه را تغییرداده طریقه گفتن (اسلام علیکم) را جاری ورایج کردکه معنی اش اینست که : شما ازهرنوع رنج وتکلیف ومصیبت ، سالم باشید.

ابن عربی در(احکام القران) گفته است که لفظ (سلام) ازاسماء الحسنی است ومعنی (اسلام علیکم) اینست که : (الله رقیب علیکم) یعنی الله تعالی محافظ شما باد.

فرق میان سلام اسلامی وسایرملل دیگر :

درهمه کشورها رایج است که وقتی مردم با یکدیگرملاقات میکنند کلمه ای برای موافقت واظهارمحبت فیمابین اظهارمیدارند، اما اگرآن کلمات با (اسلام علیکم) مقایسه شود، معلوم میگردد، که آنقدرسلام اسلامی ازجامعیت برخورداراست که احوالپرسی های دیگرنیست. زیرا که الفاظ سلام تنها اظهارمحبت نیست بلکه ادای حق محبت نیزهست. ازخداوند چنین میخواهند که شما را ازتمام افات وآلام نگهدارد. این کلمه درعین حال یک عبادت هم هست ووسیله ای برای تذکربرادرمسلمان به یادخدانیزهست. وهمچنین کسی که ازخداوند (ج) میخواهد که دیگری ازتمام آفات وتکالیف حفظ شود گویا که اودرضمن این وعده میکند که : شما ازدست وزبان من درامان هستید ومن محافظ جان، مال وآبروی شما نیزهستم.

خلاصه اینکه تحیه اسلامی جامعیت جهانی دارد:

درآن ذکرخداوند (ج) هم هست.

تذکرهم هست.

نوعی اظهارمحبت بابرادرمسلمان هم میباشد.

برای اوبهترین دعاست.

وبا اواین معاهده را نیزاظهارمیدارد که ازدست وزبان من بتوهیچ آزارورنجی نخواهد رسید. (المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده) یعنی مسلمان کسی است که ازدست وزبان اوهمه مسلمانان محفوظ باشند. وبکسی گزندی نرسد.

ازهمین رورسول گرامی اسلام (ص) برای ترویج سلام بین مسلمانان بسیارتاکید فرموده وآنرا افضل الاعمال قرارداده وفضایل وبرکات واجروثواب آنرا بیان فرموده است درصحیح مسلم ازحضرت ابوهریره رض حدیثی است که رسول کریم ص فرمود: (شما تاوقتی مومن نباشید نمیتوانید درجنت داخل شوید،

وتاوقتی که باهم محبت نداشته باشید نمی تواند ایمان شما کامل باشد ، من شمارا چنین چیزی نشان میدهم که اگر شما برآن عمل نماید محبت درمیان شما برقرارمیشود ، آن اینکه درمیان یکدیگرسلام را رواج دهید یعنی برای هر مسلمان چه اورا بشناسید یا نشناسید )

حضرت ابن عباس رض میفرماید : که شخصی ازرسول خدا (ص) پرسید که دراعمال اسلام کدام یک افضل است؟ رسول الله (ص) فرمود : شما به مردم خوراک بدهید وسلام را عام بگردانید چه شما اورا بشناسید ویا نشناسید. صحیحین ، اما احمد ترمذی وابوداود ازحضرت ابو امامه رض نقل کرده اند که رسول صلی الله علیه وسلم فرمود : ازهمه نزدیکتربه خدای تعالی آن کسی است که درسلام گفتن پیش دستی کند.

درمسند بزاز ومعجم کبیرطبرانی حدیثی ازحضرت عبد الله ابن مسعود آمده است که رسول الله (ص) فرمود : که سلام ازاسماء الحسنی الله تعالی است که خداآنرابرزمین ارسال فرموده است بنابراین شما درمیان یکدیگرسلام را عام گردانید زیرا هر گاه مسلمان وارد مجلسی میشود وبرآنان سلام میگوید آن شخص نزد خداوند تعالی بمقام بلندی دست میابد زیرا که اومقام سلام یعنی یاد الله ج تذکرداد واگراهل مجلس بسلام اوجواب نگفتند پس کسانی به اوجواب خواهند داد که ازاهل مجلس بهتراند یعنی فرشتگان خدا ج.

درحدیث دیگری رسولخدا (ص) فرموده است که : بزرگترین بخیل کسی است که درسلام دادن بخیلی کند. (طبرانی معجم کبیربه نقل ازابوهریره رض) حضرت عبدالله ابن عمربه این نیت به بازارمیرفت تا با مسلمانان ملاقات کند وبه آنان سلام گفته وثواب عبادت را دریابد.

تشریح بهترسلام وجواب آنرا رسول گرامی اسلام درحدیثی چنین بیان فرموده است ، باری شخصی بخدمت ایشان آمده وگفت : (اسلام علیک یارسول الله) آن حضرت ص درجوابش یک کلمه را اضافه کرده وفرمود : (وعلیکم السلام ورحمت الله) وبازدیگری آمد واودرسلام خود گفت : (اسلام علیک یا رسول الله ورحمت الله) آن حضرت ص درجوابش یک کلمه اضافه کرده وفرمود : ( وعلیکم السلام ورحمت الله وبرکاته) سپس دیگری آمده وگفت : (السلام علیک یا رسول الله ورحمته الله وبرکاته) آن حضرت (ص) فقط درجواب اویک کلمه (وعلیک) فرمود درددل اوشکوه آمدهوعرض کرد یا رسول الله مادروپدرم فدایت شوند ! آنان که قبلا آمدند شما درجواب شان چند دعا فرمودید من بتمام آن الفاظ سلام عرض کردم شما تنها بر(وعلیک ) اکتفاکردید آن حضرت (ص) فرمود که توبرای من هیچ کلمه ای نگذاشتی تا که من آنرا درجواب تواضافه کنم توتمام کلمات را درسلام خود جمع کردی بنابرین من درجواب تومطابق تعلیم قرانی اکتفاکردم. (ابن جریروابن ابی خاتم)

خلاصه مضمون آیت این است که هرگاه به مسلمانی سلام گفته شود جواب دادن براو واجب است اگربدون عذرشرعی جواب نداد گناهگارمی شود. البته درجواب دادن به دوچیز مختاراست ، یکی انیکه به الفاظ بهترجواب گوید دوم اینکه به عین الفاظ جواب گوید.

درمسند احمد وترمذی وابوداود ازرسول خدا ص منقول است که ازهمه مقربتربه نزد خدا کسی است که درگفتن سلام پیش دستی کند. سلام نخستین نزد اکثرعلما سنت موکده است. وحسن بصری رض گفته است که (السلام تطوع والرد فریضه) یعنی درسلا م گفتن ابتدا مختاراست اما جواب دادن آن فرض است.

درحدیث صحیح امده است که کسی که برسواری است باید پیاده را سلام گوید ، وراه رونده برنشسته سلام گوید ، گروه قلیلی که برگروه کثیری میبگذرد باید به سلام ابتدا کند. درحدیث ترمذی آمده است که هرگاه انسان وارد خانه میشود باید به اهل خانه سلام گوید ، که ازاین سلام هم برای اوبرکت است وهم برای اهل خانه. درحدیثی ازابوداود آمده است که اگربا مسلمانی باربارملاقات شوددرهرمرتبه باید سلام کند وهما طورکه دراول ملاقات سلام گفتن مسنون است هم چنین به وقت رخصت هم سلام گفتن مسنون وباعث ثواب است. حالات ذیل درسلام مستثنی است :

کسی که نمازمیخواند جواب دادنش واجب نیست بلکه مفسد نماازاست.

کسی که خطبه میخواند یا به تلاوت قرآن مشغول است.

یاآدان واقامه میگوبد یا به تدریس کتب دینی مشغول است.

یادررفع ضروریات انسانی ازقبیل رفع حاجت واستنجاء وغیره مشغول است براوسلام گفتن جایزنیست. ونیزبراوجواب سلام واجب نیست.

# د ترکیې راتلونکې حکومت

## ننګونې او احتمالات

محمد شفیق صادق

د ترکیې په هیواد کې د عدالت او ترقۍ د ګوند چارواکو ته درلوده چې د تېرې ورځې د ټولټاکنو په پایله کې به ترکیې ته د نړۍ په سیاسي انډول کې نوی مقام ورکړي او وبه توانېږي په راتلونکو سیاسي کشمکشونو کې خپل ټاکلی ځای او خپله خبره ولري خو بهرنیو او کورنیو مخالفینو چې د ترکیې د پخواني برم د اعادې څخه په ویره کې ؤ د بهرنۍ لوېې میډیا او ځواکمنو قدرتونو په مرسته د عدالت د ګوند دا لوی آرمان چې د اسلامي نړۍ د یو میلیارد مسلمانانو برخلیک او آرمان ورسره تړلی تر یوې مودې شاتګ ته مجبور کړ او د ښاغلي اردوغان سیاستونه یې د دکتاتورۍ د تر لاسه کولو په توروننګول.
دا چې په راتلونکي کې به د عدالت او ترقۍ ګوند څه ډول وتوانېږي د ترکیې د خلکو باور بېرته تر لاسه کړي، دا به د عدالت د ګوند راتلونکي رهبري ثابته کړي، خو په اوس کې د ټولټاکنو په نتیجه کې د ترکیې د راتلونکي حکومت برخلیک له لاندې پوښتنو او احتمالاتو سره مخ دی:

د ترکیې د ټاکنو وروستۍ نتیجې دا په ډاګه کړه چې هلته یو ګوند هم په یوازې سر د حکومت جوړولو توان نه لري نو په دې صورت کې د لاندې احتمالاتو امکان شته:

۱- د عدالت او ترقۍ ګوند به د اقلیت په بنسټ داسې حکومت جوړ کړي چې تل به د نورو ګوندونو تر فشار لاندې او د پرېکړو په مهال به د هغو مرستې ته اړ وي، په نتیجه کې به حکومت ددې توان نه لري چې خپل پرمختیایي پلانونه پلي کړي او په کمزورې حالت کې به خپل واک ته دوام ورکوي.

۲- . په دوهم احتمال سره، د ترکیې عدالت ګوند به د یوه ائتلافي حکومت په جوړولو مجبور شي، په دې صورت کې باید له دوه ګوندونو څخه یو انتخاب کړي، لومړی د خلکو دیموکراتیک ګوند دی، چې تر ډېره د کردانو سره د تفاهم او مصالحې په هکله د عدالت او ترقۍ له ګوند سره متفاهم پاتې شوي، خو دا ګوند بیا د عدالت د ګوند د بهرني سیاست سره جوړ نه راځي نو د ائتلاف شونتیا یې کمه ده، دوهم ګوند نشنلست قومي ګوند دی چې په ترکي قومي مسایلو کې له عدالت سره نژدېوالی لري، خو دا ګوند بیا د عدالت د ګوند سره د کردانو په هکله د مصالحې د پالیسۍ سره په مخالفت کې دی اونه غواړي په راتلونکو ټولټاکنو کې د کردانو د نشنلستو مخالفینو رایه له لاسه ورکړي.

۳- دریم احتمال دادی چې د واکمن عدالت ګوند مخالف ګوندونه په یوه ائتلاف کې سره راټول شي او خپله دوی د اکثریت په اساس حکومت جوړ کړي، چې دا کار ددې ګوندونو تر منځ د سیاستونو لوی واټن له امله ناشونی برېښي خو کیدی شي چې ځینې بهرني (قوي لاسونه او کړۍ) دا ګوندونه یوه ائتلاف ته سره مجبور کړي تر څو په اوس کې خود عدالت ګوند د بیا واک ته رسېدو مخه ونیسي خو بیا به هم د عدالت ګوند په پارلمان کې د نژدې نیمو څوکیو په لرلو او د ښاغلي اردوغان په ریاست سره خپله خبره لري، او څوک به یې په مخ کې خنډ نشي جوړیدی.

۴- څلورم احتمال دادی چې د عدالت او ترقۍ ګوند به په لږ تاوان سره فاینل ته راووزي او کیدای شي ځینې له لاسه ورکړي چوکۍ

بیرته ترلاسه کړي، هغه دا چې د عدالت ګوند د حکومت له جوړولو ډډه وکړي ، او نورهم پرې ئږدي چې حکومت جوړ کړي، ټول ګوندونه په دې مجبور کړي چې له سره نوې ټاکنې ترسره کړي، نو په دې سره به لاندې لاسته راوړنې ولري:

الف: ددې ګوند د لاسه ورکړو څوکیو لامل دا و چې د ګوند ځینې مرور خلکو د سیاسي مخالفتونو او سزا ورکولو له لامله رایه ورنه کړه خو دوی په دې نه پوهېدل چې ددوی رایه نه ورکول به ګوند داسې شاتګ سره مخ کړي نو کیدای شي په دوهم پړاو کې دا مرور خلک د ګوند په طرفدارۍ رایه ورکړي او له لاسه وتلې څوکۍ بیرته تر لاسه کړي.

ب: دې ټاکنو د ترکیې د عامو خلکو په ذهنونو کې د یوه مجهول راتلونکي حالت ترسیم کړی چې ډیرۍ ترکان دا حالت نه خوښوي او د عدالت او ترقۍ د ګوند د بریا څخه مخکې کلونه ورپه یادوي چې ترکیه یې د یوه بې ثباته او بحراني حالت سره مخ کړې وه، نو دا خلک د ترکیې د نجات په موخه (که د عدالت د ګوند سره سیاسي او ګوندې مخالفت هم لري) بیا د عدالت ګوند ته رایه ورکوي.

ج: ځینې پانګه وال او کاروباري خلک چې د ترکیې د اقتصادي ناورینونو څخه ویره لري او د عدالت د ګوند په حکومت کې یې ښې اقتصادي لاسته راوړنې درلودې هڅه به وکړي چې د پخوا په شان د خپل کاروبار د دوام په موخه د عدالت ګوند ته رایه ورکړي.

د: هغه خلکو چې کوچنیو اسلام پاله او متدینو ډلو ته یې رایه ورکړې په طبعي ډول خپلې رایې د عدالت په ګټه استعمالوي ځکه دوی پوهیږي چې ددوی د نه ګډون او یا د رایو د ویش په پایله کې د عدالت ګوند له شاتګ سره مخ شو.

نو کیدای شي د ترکیې د سیاست په دې حساس پړاو کې چې د اسلامي نړۍ او لویدیځ پالو ترمنځ د توازن کرښه جوړوي په راتلونکو ورځو کې نور پرمختګونه او احتمالات هم را څرګند شي، ځکه دې هیواد ته د نړۍ ټول لوی قدرتونه او حرکتونه د اندول د ساتلو او اوښتون په موخه د انتظار شیبې شمیري ، او په بې صبرۍ یې سیاسي حالات څاري

# غزل – محمدي

پـــــردو زمــــونږه کــــور کلـــي تـــــه جنـــگ راوړی دی
نـــــن بیـــــا خکـــــه حـــــالاتونـــــوی رنــــگ راوړی دی

زمـــــا پـــــه کلتـــور لـــوبې دې خنـــدا ده اعتــــراض ده
هرچـــــا دخپلـــــې خوښـــــې خپـــــل فرهنــــگ راوړی دی

زمــــونږه زلمکیــــو چـــــه اخســـــتې دننــــگ تــــوره
مغــــرورو تـــــه یـــــې تـــــل دخطــــر زنــــگ راوړی دی

دښـــمن چـــې خزانــې درښـــکاروي چـــې خطانشـــئ
خابښـــــارېئ هم لـــــه ځـــــان ســـــره ترځنــــگ راوړی دی

دوخـــــت تقاضـــــا داده چـــــې راووزي لـــــه خپـــــل تیکــــي
ښـــــکاریږي دبابـــــا تـــــوري مـــــوزنــــګ راوړی دی

شـــاباش شـــه محمـــدی ســـتا پـــه ملګـــرو دي شـــاباش وي
ســـرغـــوځ کـــور تـــه راوړي دســـتاریــــې دنــــګ راوړی دی



# معضله خونین برما و بی چارگی

# " سازمان همکاری اسلامی"

نویسنده : حبیبی سمنگانی

" سازمان همکاری اسلامی " در سنه ء نوزده صد و شصت ونه میلادی یعنی چهل و شش سال قبل از امروز به صفت بزرگ ترین نمائنده ء کشور های اسلامی بنیان گذاری شد ، این سازمان با داشتن پنجاه و هفت عضو در چهر قاره ء جهان دومین بزرگ ترین سازمان بین المللی در جهان پنداشته می شود ، این سازمان که در واکنش به حمله ء یهودیان بر مسجد بیت المقدس تاسیس شد ادعا دارد که برای دفاع از یک و نیم ملیارد مسلمانان جهان می کوشد ، دفتر مرکزی این سازمان در شهر ساحلی " جده " در عربستان سعودی قرار دارد .

نام این سازمان در زبان انگلیسی "آرگنائزیشن آف اسلامک کوآپریشن " است که مخفف آن در الفبای انگلیسی " او آی سی " میگردد ، عجیب یک اتفاق است که " او آی سی " یک جمله ء مستقل در زبان انگلیسی نیز است که به معنای " اوه ، من می بینم " می باشد ، و این جمله در هنگام یک حادثه از روی تعجب گفته می شود و یا هم در دوران خشم از روی تهدید استعمال می گردد ، چنانکه در زبان دری نیز در حالت غضب گفته می شود " من ترا خواهد دیدم " ، امروز بدون شک " او آی سی " یعنی مخفف " سازمان همکاری اسلامی " نیز جز همان دو معنای جمله ء انگلیسی دیگر مفهومی ندارد

حاصل اینکه اگر امروز واژه ء " او آی سی " را به زبان آورده شود هیچ کسی معنای " سازمان همکاری اسلامی " را اخذ نمی کند بلکه لازم این معنی را که صرف تعجب کردن و نگریستن است درک می کند ، زیرا از روز نخست تا اکنون این سازمان جز " تعجب کردن و نگریستن " هیچ گامی در صحنه ء عمل نبرداشته است .

مثلا در طی پانزده سال گذشته یعنی از آغاز قرن بست و یک میلادی تا این ساعت چه روزهای تلخی نبوده است که در کشورهای مسلمان نشین نگذشته باشد ، از فلسطین ، افغانستان ، عراق ، شام ، سودان ، لیبیا تا یمن تحولات خونین و سنگین رخ داد که باعث قتل و معلول و آواره شدن ملیون ها مسلمان شد و ولیکن این سازمان درین مدت روح فرسا ساکت بماند ، بیش از صد ملیون مسلمان در کشورهای غیر اسلامی همچون چین ، روسیه و هند و کشورهای اروپای و امریکای بی جا تعزیر شدند و از انجام دهی فرامین بنیادی دین اسلام منع کرده شدند و این سازمان همچنان سکوت بر لب بماند ، امروز صد ها هزار مسلمانان روهنگیای در برما نه صرف اینکه حق شهروندی محروم میگردند بلکه با اجبار از کشور رانده می شوند وآن ها برای سر پناه آشیانه ئ ندارند ، حتی اگر به امید کشور مسلمان نشین بنگلا دیش و یا اندونیزیا در بحر سفر می کنند رژیم های مستبد این دو کشور نمی گذارند این آوارگان بی خاک و وطن از کشتی های کوچک و پر خطر فرودآمده در سواحل بنگلا دیش و اندونیزیا سکونت بکنند ، لهذا نا گزیر اند هر نوع شکنجه ء وحشیانه ء بودای ها را متقبل شده تا آخرین رمق حیات درمیان شعله

هـای آتش بسوزند و لـیکن این بـار نیـز " سـازمان همکـاری اسـلامی " جـز نگریسـتن دیگـر کـاری انجـام نـداد .
سازمان فوق الذکر معمولاً هر سه سال بعد نشست سربراهان کشورهای مسلمان نشین را دائر میکند و می تواند قبل از سه سال نیز نشست اضطراری برپا بکند ، چنانکه در سالهای " نوزده صد و نود و هفت میلادی " ، " دو هزار سه میلادی " و " دو هزار و پنج میلادی " سه نشست اضطراری بر گزار نمود ، آیا این سازمان نمی تواند برای حل یابی معضله ء مسلمانان روهنگیای یک تجمع اضطراری تشکیل بدهد ؟ و لیکن سوال اینست آیا آخرین نشست اضطراری که ده سال قبل درباره ء حل بحران فلسطین و عراق صورت گرفته بود مثمر و منتج واقع شد ؟ هرگز نه ............ پس چگونه توقع داشته باشیم که اگر ( فرضاً ) یک نشست سربراهان صورت پذیر گردد در زندگانی مسلمانان برما یک تحول مثبت و حیات بخش خواهد آورد ، به همگان عیان است به دلیل بی اعتمادی و نا باوری بزرگ که درمیان اعضاء این سازمان وجود دارد هرگز به یک اتفاق نمی رسند ، بلی اتفاق که درد های مسلمانان روهنگیای را مداوای شافی بکند .

بدون تردد ، چنانکه دولت مردان رژیم کشورهای مسلمان نشین از سرمایه ء دین پروری و مسلمان دوستی حروم اند همچنان زمام داران این سازمان نیز از درد های بیکران مسلمانان جهان نابلد اند ، بلکه واشگاف باید گفت این سازمان جز چند ساختمان مجلل ، چند دانشگاه ، یک اندازه پول خیراتی و صد ها دیپلمات آسوده خاطر دیگر چه در اختیار دارد ؟ بلی ، این اختیار را نیز دارد که کشوری را به عضویت سازمان سرفراز بکند و عضویت کشوری دیگری را معطل بکند ، و لیکن در برابر کشور " برما " که نه خواهان شمولیت در این سازمان است و نه هم هراس از معطل شدن دارد این " سازمان بی چاره " چه کرده می تواند ؟

# خوږ آهنګ – الهام

سید احسان الله الهام

د شهید په وینو رنګ یې شهادته
چې خوشبویه تر لونګ یې شهادته

دا چې دغسې په زړونو نن سوزې
مست غزل یې خوږ آهنګ یې شهادته

تا کې نغښتې دي رحمت د رب رضا یې
ته غیرت ، میړانه ، ننګ یې شهادته

تخت و تاج شاه او ګدا دي په ارمان دي
د بریا د شپیلۍ زنګ یې شهادته

د هستیو ستر مقام یې رب ښودلی
آن تر عرشه رسې دنګ یې شهادته

ته نیک بخت پسې نیک بخت په تا پسې دی
هم ډیوه یې هم پتنګ یې شهادته

تر هغو به وي میلمه د بدبختیو
څو الهام څخه په څنګ یې شهادته



# د یمن بشري ناورین...

**حسن زوی**

داسلامي نړۍ مشهوراوتاریخي اوپه جغرافیـایي لحاظ دنړۍ لپاره خورامهم مسلمان هېواد یمن چې دموډو راهیسې دداخلي ګډوډیواوبهرنیو لاسوهنوښکاردی ؛پاک ،دیندار، صالح ، دولس خیرخواه ، په وطن مین اودوطنوالودخدمت احساس لرونکی قیادت ورته تراوسه ندی په برخه شوی نو سره له دې چې داهېواد په منځني ختیځ کې پروت دی خودمنځني ختیځ دنوروهېوادونوپه څېرېدای هېواد ندی بلکې دنړۍ په داسې غریبو او وروسته پاتې هېوادونوکې شمېردی چې دولت یې دبل چاله مرستو پرته نه شي چلېدای .

دهېوادپه جنوبي اوشرقي برخوکې دطبعي منابعو غني زېرمې شته خونه تري تراوسه ور استفاده شویده اونه تري هم ولس ته کومه ګټه رسېدلې ده .

اوداچې داهېواد داوبودزیات قلت سره مخامخ دی نودهېواد مالداري اوکرهنه هم دزوال ښکارده اوتر ۲۵ میلیونه نفوس لرونکی داهېواد دخپلې اړتیاپوره کولولپاره ۹۰ سلنه غنم له بهرنه راواردوي . نوبولورته ددې هېواد اوسېدونکي په اقتصادي لحاظ ښه کمزوري دي اوبل لورته پدې هېوادکې دخوراکي توکوقیمتونه ښه لوړدي ؛ داروښانه خبره ده چې په یوهېوادکې چې دخلکوداخستلو قوت کمزوری وي اونرخونه لوړ وي نوپه هغه هېوادکې ژوند تېرول ګران وي اوبیاچې پرې جنګ هم مسلط شي.

له بده مرغه چې دیمن اوسېدونکي اوس په همداسې حالت کې قرارلري .

په یمن کې چې دتېرکال یانې ۲۰۱۴م داګست میاشت کې حوثي باغیانودیمن پرواک دقبضې راوستلولپاره تحریک پیل اوبالآخره دصنعاء پرواک په بشپړې قبضې راوستلوکې کامیاب اودیمن دولت ړنګ شو نوپدې هېوادکې بېکاري مخ په زیاتېدوشوه اودغنمواونوروخوراکي توکیو راواردول چې بند شول نودلته دخوراکي توکیوسخت قلت رامنځته شو خوبیاچې پر یمن دروان میلادي کال دمارچ په ۲۶مې نېټې دسعودي په مشرۍ کې دعربو داتحادهوایي بریدونه پیل شول اوتر دوه میاشتوپې دوام وکړنو داوسېدلوکې سیمې په کنډوالوبدلې شوې ؛ دیوشمېرسترو سیمواو ولایتونو نه خلک دخپلوکورونوپرېښودلوته اړشول ؛دزیاتو سیمو دآبیارۍ اوآب رسانۍ نظام له منځه ولاړ؛ ځاروي یکې دولږې اوتنـدې لـه امله هـلاک اودډول ډول مرضونوښکارشـول اودغنمـو ،دواګانواونورو خـوراکي توکیـو نرخونه دومره لوړشول چې اوس دغریبویمنیانوداخستلونه وتي دي ؛پرهېواد قحط ته ورته فضاراخپره ده اودیوستر بشري ناورین د رامنځته کېدوخطرمخ په زیاتېدو دی.

دملګروملتونودکرهنې اوخوراک اداري دروم ځـانګې مشـردهېوادپه ډېروسیموکې داوبواوخوراکي موادو دقلت ا خطرناکه نقشه وړاندې کړېده ؛ هغه وایي یمن دخپل ۲۵ میلیونه نفوس لپاره غنم دبهرنه راواردول چې دجنګ له امله اوس دغنمو راوارېدل ودرېدلي دي ؛داوبوزخیرې اودآب رسانۍ اوآبیارۍ نظام له منځه تللی دی چې له امله یې ځاروي دسختومرضونوښکاردي اوپه لوړه کچه مړه کېږي ؛دتېپیانولپاره ددوادنشتوالي له امله هم سخت تشویش شتون لري .

هغه زیاته کړې چې له بمباریو دمتضررونانواصل تعداد خوندی معلوم خوسعودي دسعاده ولایت ټولواوسېدونکوته دسیمې نه دوتلوحکم کړیدی اودا ولایت یې چې دبمبارستر هدف ګرځولی نورښتیا یې هم ددې ځای ټول اوسېدونکي دخپلو ځایونوپرېښودلو ته اړکړیدي ؛ داډېرلوی مهاجرت دی اودهغو خلکو لپاره چې کورونه یې په کنډوالوبدل شوي وي ډېر ستر مصیبت دی ؛په دومره لږوخت کې به دومره زیاتوانسانانوته سرپناه له کوم ځایه برابره شي په داسې حال کې چې هرښاراوهرکلی دبمبارښکار شویدی .

دبشردحقوقونړیوالی اداري هیومن رایتس واچ دوسلودځانګې مشر(( ستیفن ګوز)) ویلي دي چې دسعودي په مشرۍ کې داتحادیانوطیارې په سعاده ولایت باندې خوشه یې بمونه غورځوي چې له امله یې په مرګونوکې ډېرزیاتوالی راغلی دی .

دیادولووړده چې په ۲۰۰۸م کې د۱۱۶ هېوادونو ترمنځ درامنځته شوي تړون له مخې په جنګونوکې دخوشه یې بمونوکارول دبشریت ضداومنع اعلان شویدي ؛ داسمه ده چې سعودي اودسعودي اوسنو اتحادیانوکې یوهېوادهم داتړون ندی لاسلیک کړی لکه چې امریکاندی لاسلیک کړی خودنه لاسلیک کولوله امله دوئ له دې قانون نه وتلی نشي بلکې که داکارپې رښتیاهم کړی وي نویقیناً به جنګي مجرمین ګڼلی کېږي ځکه چې په جنګونوکې خودواړه اړخونه خامخادبشردحقوقونه سرغړاوی کوي خودقانوني مسؤلیت نه ځان نشي ساتلای .

نولنډه دا چې دیادبشري ناورین اصل لامل خوحوثي باغیان دي خوپر یمن دسعودي په مشرۍ کې د اتحادیانو حملو هم دعام ولس لپاره له ځانه سره ستر تاوانونه لرلي دي .

حوثي باغیـان دسیمودنیولو لپاره لـه همـاغو تکتیکونـو کـاراخلي دکومونه یې چې اسدي ملېشې په شام کې اخلي ؛یانې کومه سیمه چې نیول غواړي دهغې سیمې دخوراکي موادو اودڅښاک داوبودرسېدو ټولې لارې بندوي اوچې سیمې ونیسي نوپکې لوی وحشت خپروي .

محترمولوستوالوکې شاید ډېروته دتېرې اپریل میاشت کې دعربي اونوروزنړیوالورسنیوله لورې خپورشوی داخبریادوي چې : دعدن ،مکلاء

،المعلاء ،التـواهي ،القلوعـه اودكريترنـومي سيموداوبورسـولو لـوى نلونـه اودعدن دبرق ستېشن حوثي باغيانو الوځولي دى .

دلندن نـه خپرېدونكي الشرق الاوسط نومى مشهورې ورځپاڼې ليكلي چې حوثيـانو تـول اخلاقي اصـول ترپښـولاندى كـړي اودخپلې قبضې لاندې راوستول شـوېو سيمو كې دعاموخلكودمالونواوعزتونوپه لوټولوپيل كړېدى .

په يمن كې دبشردحقوقونړيوالو ادارو ويلي دي چې داپريل ددوهمې لسيزې په پيل كې په صنعاء ،عدن ،صعده ،الحديده ،الزماراودلب كې دبشردحقوقونه دسرغړاوى ۴ سوه پېښې ثبت شويدي اوكومې چې ندي ثبت شوې هغه خوله شماره وتلى دي .

نوهـدف دادى چې دنوروپـه لمسـون ددولـت ضـد دحوثيانوبغـاوت ،دولـت ړنګـول اوبيا پـه مـذهبي لحـاظ دمسـلمانانولپاره خـوراهم هېـواد سـعودي تـه ګواښـونه ديمني ولـس ديادوبـدبختيو اصـل لامـل دى نوځكـه دحوثيانوبغاوت قطعاًدمنلو ورنـدي خوېدي تريخ حقيقت هم بايد اعتراف وكړوچې دسـعودي پـه مشـرى كې دعربـو هېوادونواتحـاد جوړېـدل اوپرحوثيانوهوايي بريدونه ،نه يواځې داچې دسعودي لپاره ګټورندي بلكې له ځانه سره يې ديمني ولس لپاره ډېرستر تكليفونه اوكړاوونـه هم راوړيـدي ؛ يانې پـه بې سـاري ډول دغـذائي موادو ،دڅښـاك داوبودكمښـت اوپـه لـوړه كچه دخپلوكورونونه دكډه كېدلوهغه كړاوونه چې ديمن دغريب ولس لپاره ټېخي دتحمل ورندي .

خو متاسفانه چې نه دجنګ نه ورانـدې ددې كړاوونود مخنيوي لپاره څه تدابيرنيول شوي وو اونه يې هم اوس څه غم خوړل كېږي .

دسـعودي سـره هـيڅ نـه ښـايي چې لـه لـوري يې كـوم مسـلمان ولـس ياهېوادتـه زيـان اودرد ورسېږي نـوديمن مسـلمانان كـه دسـعودي دبمبارۍ نتيجه كې متضرر كېږي دادسعودي مقام اوحيثيت ته ډېره دتاوان خبره ده.

اسـلامي نـړۍ چې قـاطع اكثريت پكې داهـل السـنة والجماعـة دى سـعودي عربسـتان تـه پـه امتيـازي قـدراو احتـرام قائلـه ده ؛ دلتـه دحرمينوشريفينودشـتون لـه املـه هرمسـلمان دې هېـواد تـه يومتـوجې اومتحقق خطراو ګـواښ هـم نشي زغملاى اوددې هېـواد نـه دفـاع دځـان مسـئوليت ګڼي ؛ دسـعودي عربسـتان چې پـه اسـلامي نـړۍ كې كـوم مقـام اومنزلت دى بايد خپل دامقام هېر نكړي اوهرقدم چې پورته كوي بايد دخپل مقام او حيثيت په پام كې نيولوسره يې پورته كړي .

نوچې تولـه اسلامي نـړۍ سـعودي تـه داحترام په نظر ګوري پرتولې اسـلامي نـړۍ شـفقت اوتـرحم كـول هـم دسـعودي مسـئوليت دى اودامسئوليت بايد سعودي ادا كړي .

داسلامي نړۍ په هر هېواد اوهر ولس كې چې درد اوغم وي سعودي هم بايد بې غمه نه وي بلكې ددردمنواوغمجنو ولسونو او هېوادونو په غم اودرد كې بايـدچې شـريک وي ؛هغـه غـم او درد دسـماوي آفتونولـه املـه وي ؛دلوېو زبرځواكونـو لـه لـوري وي اوكـه دګاونـډي هېوادونـو او ظالموحاكمانوله لوري وي.

خوله بده مرغه چې سعودي سره چې څنګه ښايي كړنلاره يې هغسې نده ؛ عملاً په ډېروكمومواردوكې سعودي دمسلمانانوپه غم اودردكې شريک ليدل كېږي ؛په زياترو وختونوكې داسلامي نړۍ په ډېرولويو احداثوكې هم سعودى ځان بې تفاوته كړى وي او ددېرې بې اعتنايۍ مظاهره كوي .

دتېركال دمئ اواګست مياشتوكې پرغزې داسرائيلو وحشي حملې تر ۵۱ ورځو روانې وې چې پكې دكوچنيانواومېرمنوپه شمول په زرونوبې ګناه مسـلمانان ټپيـان اوشـهيدان شـول تولـه غـزه پـه كنـدوالې بدلـه شـوه خوسعودي هيڅ عكس العمل ښكاره نكړ اوداسې چوپه خوله و لكه چې دغم اودردكومه كوچنۍ پېښه هم نه وي رامنځته شوى .

همدارازپـه مصـركې دالسيسـى دكودتـايې رژيـم لـه لـوري چې دمېرمنو،كوچنيانواوبوډاګانوپه شمول په زرونواسلام خوښې ووژل شول ،ټپيـان شـول زندانونوتـه ولاړل چې اوس پـه زنـدانونوكې داعـدام پـه حكمونومحكومېږي سعودي نه يواځې داچې ددې ظلم پرضد يې يوكوچنۍ دحق اواز پورته نكړبلكې برعكس يې دالسيسى ظالم رژيم تائيداوه اولوېې مالي مرستې يې ورسروكړې .

دوه كاله دمخه په برماكې په لسګونوزره مسلمانان دوحشي بودايانوله لـوري ووژل شـول ، ژونـدي وسوځول شـول ؛بې عفتـه شـول ؛تربټم شـول ؛ پـه سـونوزره بې كـوره شـول اوآن دهېـواد دتابعيت نـه هـم محرومېږي جوماتونه اوتولې تولې سيمې يې بودايانو سوځولې خوسعودي نه دخپل نړيوال سياسي اثررسـوخ نـه كاراخسـتلو اونـه يـې هـم ددې خونخـوارۍ لـړۍ دودرېـدلولپاره مؤثركوښښ وكړ .

حقيـت دادى چې داسلامي نـړۍ پـه اړه دسعودى دې دريـځ تـه دنـړۍ مسلمانان په بد نظرګوري اودسعودى نه پدې اړه سخت ګيلمن دي .

نودسـعودي لپاره پـه خپـل دې دريځ كې بـدلون راوسـتل ډېـراړين دى ترڅوېې مقام اواعتمادته تاوان ونه رسېږي اوحيثيت يې دېرېوتونه وژغورل شي اونبغ په نبغه كه دسعودي دعمل په نتيجه كې كوم مسلمان ولس ته تاوان رسېږي نورښتياداده چې په اړه يې مسلمانان ددېر تشويش ښكاركېږي .

دسـعودي دولت بيابيـاداهوډ څرګنـدوي چې ترڅوحـوثي باغيانوپـه ځمكه وسله نه وي ايښې ؛ قانون ته يې سرنه وي ټيټ كړى اوديمن قانوني ولسمشـرېېرته دواك واګې پـه لاس كې نـه وى اخسـتي ترهغې بـه پـه حوثيانوحملې روانى وي .

داسمه ده چې دنړۍ دهرهېواد په څېرسعودي هم خپل امنيت ته متوجې ګواښونه نشي زغملاى اوهغه هم ديوبل هېواد سره دتراولرونكې بـاغي ډلې لـه لـوري؛ خـوداچې دحوثيانودځپلوسـره يوځـاى ديمـن عـام مسلمانان هم متأثره كېدل نوسعودي بايدددې ګواښونو دله منځه ورلو

،المعلاء ،التواهي ،القلوعه اودکریترنومي سیموداوبورسولو لوی نلونه اودعدن دبرق ستېشن حوثی باغیانو الوځولي دی.

دلندن نه خپرېدونکي الشرق الاوسط نومی مشهورې ورځپاڼې لیکلي چې حوثیانو ټول اخلاقي اصول تر پښو لاندی کړي اودخپلې قبضې لاندې راوستول شویو سیمو کې دعاموخلکودمالونواوعزتونوپه لوټولوپیل کړیدی .

په یمن کې دبشردحقوقونړیوالو ادارو ویلي دي چې داپریل ددوهمې لسیزې په پیل کې په صنعاء ،عدن ،صعده ،الحدیده ،الزماراودلب کې دبشردحقوقونه دسرغړاوی ۴ سوه پېښې ثبت شویدي اوکومې چې ندي ثبت شوې هغه خوله شماره وتلی دي .

نوهدف دادی چې دنوروپه لمسون ددولت ضد دحوثیانوبغاوت ،دولت رنګول اوبیاپه مذهبي لحاظ دمسلمانانولپاره خوراهم هېواد سعودي ته ګواښونه دیمني ولس دیادوبدبختیو اصل لامل دی نوځکه دحوثیانوبغاوت قطعاًدمنلو ورندي خوبدې تریخ حقیقت هم باید اعتراف وکړوچې دسعودي په مشرۍ کې دعربو هېوادونواتحاد جوړېدل اوپرحوثیانوهوایي بریدونه ،نه یواځې داچې دسعودي لپاره ګټورندي بلکې له ځانه سره یې دیمني ولس لپاره ډېرستر تکلیفونه اوکړاوونه هم راوړیدي ؛ یانې په بې ساري ډول دغذائي موادو،دڅښاک داوبودکمښت اوپه لوره کچه دخپلوکورونونه دکډه کېدلوهغه کړاوونه چې دیمن دغریب ولس لپاره بېخي دتحمل ورندي .

خو متاسفانه چې نه دجنګ نه ورانده ددې کړاوونود مخنیوي لپاره څه تدابیرنیول شوي وو اونه یې هم اوس څه غم خوړل کېږي .

دسعودي سره هیڅ نه ښایي چې له لوري یې کوم مسلمان ولس یاهېوادته زیان اودرد ورسېږي نودیمن مسلمانان که دسعودي دبمبارۍپه نتیجه کې متضرر کېږي دادسعودي مقام اوحیثیت ته ډېره دتاوان خبره ده.

اسلامي نړۍ چې قاطع اکثریت یې داهل السنة والجماعة دی سعودي عربستان ته په امتیازي قدراو احترام قائله ده ؛ دلته دحرمینوشریفینودشتون له امله هرمسلمان دې هېواد ته یومتوجې اومتحقق خطراو ګواښ هم نشي زغملای اوددې هېواد نه دفاع دځان مسئولیت ګڼي ؛ دسعودي عربستان چې په اسلامي نړۍ کې کوم مقام اومنزلت دی باید خپل دامقام هېر نکړي اوهرقدم چې پورته کوي باید دخپل مقام او حیثیت په پام کې نیولوسره یې پورته کړي .

نوچې ټوله اسلامي نړۍ سعودي ته داحترام په نظر ګوري پرټولې اسلامي نړۍ شفقت اوترحم کول هم دسعودي مسئولیت دی اودامسئولیت باید سعودي ادا کړي .

داسلامي نړۍ په هر هېواد اوهر ولس کې چې درد اوغم وي سعودي هم باید بې غمه نه وي بلکې ددردمنواوغمجنو ولسونو او هېوادونو په غم اودرد کې بایدچې شریک وي ؛هغه غم او درد دسماوي آفتونوله امله وي ؛دلوبو زبرځواکونو له لوري وي اوکه دګاونډي هېوادونو او ظالموحاکمانوله لوري وي.

خوله بده مرغه چې سعودي سره چې څنګه ښایي کړنلاره یې هغسې نده ؛ عملاً په ډېروکمومواردوکې سعودي دمسلمانانوپه غم اودردکې شریک لیدل کېږي ؛په زیاترو وختونوکې داسلامي نړۍ په ډېرولویو احداثوکې هم سعودی ځان بې تفاوته کړی وي او ددېرې بې اعتنایۍ مظاهره کوي .

دتېرکال دمئ اواګست میاشتوکې پرغزې داسرائیلو وحشي حملې تر ۵۱ ورځو روانې وې چې پکې دکوچنیانواومېرمنوپه شمول په زرونوبې ګناه مسلمانان ټپیان اوشهیدان شول ټوله غزه په کنډوالې بدله شوه خوسعودي هیڅ عکس العمل ښکاره نکړ اوداسې چوپه خوله و لکه چې دغم اودردکومه کوچنۍ پېښه هم نه وي رامنځته شوی .

همدارازپه مصرکې دالسیسی دکودتاپي رژیم له لوري چې دمېرمنو،کوچنیانواوبوډاګانوپه شمول په زرونواسلام خوښې ووژل شول ،ټپیان شول زندانونوته ولاړل چې اوس په زندانونوکې داعدام په حکمونومحکومېږي سعودي نه یواځې داچې ددې ظلم پرضد یې یوکوچنۍ دحق اواز پورته نکړبلکې برعکس یې دالسیسی ظالم رژیم تائیداوه اولوې مالي مرستې یې ورسروکړې .

دوه کاله دمخه په برماکې په لسګونوزره مسلمانان دوحشي بوداېانوله لوري ووژل شول ، ژوندي وسوځول شول ؛بې عفته شول ؛تربتم شول ؛ په سونوزره بې کوره شول اوآن دهېواد دتابعیت نه هم محرومېږي جوماتونه اوټولې ټولې سیمې یې بوداېانو سوځولې خوسعودي نه دخپل نړیوال سیاسي اثررسوخ نه کاراخستلو اونه یې هم ددې خونخوارۍ لړۍ دودرېدلولپاره مؤثرکوښښ وکړ .

حقیت دادی چې داسلامي نړۍ په اړه دسعودی دې دریځ ته دنړۍ مسلمانان په بد نظرګوري اودسعودی نه پدې اړه سخت ګیلمن دي .

نودسعودي لپاره په خپل دې دریځ کې بدلون راوستل ډېراړین دی ترڅوپې مقام اواعتمادته تاوان ونه رسېږي اوحیثیت یې دېرېوتونه وژغورل شي اونبغ په نبغه که دسعودي دعمل په نتیجه کې کوم مسلمان ولس ته تاوان رسېږي نورښتیاداده چې په اړه یې مسلمانان دډېر تشویش ښکارکېږي .

دسعودي دولت بیابیاداهوډ څرګندوي چې ترڅوحوثي باغیانوپه څمکه وسله نه وي ایښې ؛ قانون ته یې سرنه وي ټیټ کړی اودیمن قانوني ولسمشرېبرته دواک واګې په لاس کې نه وی اخستې ترهغې به په حوثیانوحملې روانې وي .

داسمه ده چې دنړۍ دهرهېواد په څېرسعودي هم خپل امنیت ته متوجې ګواښونه نشي زغملای اوهغه هم دیوبل هېواد سره دتړاولرونکې باغي ډلې له لوري؛ خوداچې دحوثیانودځپلوسره یوځای دیمن عام مسلمانان هم متأثره کېدل نوسعودي بایدددې ګواښونو دله منځه ورلو

لپاره هم د دپلوماسۍ په ډګرکې په نړیواله سطحه ټولې هڅې کړې وای اوهم یې داسلامي نړۍ دبا اثره هېوادونونه دمسئلې دحل لپاره داغېزمنو اقداماتوجدي غوښتنه کړې وای اویادا هېوادونوله خپل لورې منځګړیتوب ته راوړاندي شوي وای ؛ دیمن مسئله ډېره کوچنۍ مسئله وه خو سوله ایزحل یې ځکه ندی راوتی چې پدې اړه بیخي یوکوچنۍ اقدام هم اسلامي نړۍ ندی کړی .

سعودي دپورته یادوشویوخیزونوترلاسه کېدل دجنګ اهداف ګڼي خوکه په غوروکتل شي نودبمبارېوله لارې ددې اهدافو ترلاسه کېدل ناشوني ښکاري؛ نه دمنصورهادي بیا واک ته رسول اسان کاردی اونه دومره ژرحوثیان په شا کېدونکي او وسله ایښودونکي دي ؛یواځې په هوایې بمبارکار نه کېږي اویمن ته دخپلوځمکنو فوځونو ورننوېستلو ته شاید سعودي هیڅکله هم غاړه کېنږدي ځکه چې یمن ته دځمکنوفوځونودننویستلو په صورت کې دیمنیانوپه مقابل کې دسعودي فوځونودکامیابۍ چانس کم اودډېروځاني اومالي تلفاتواحتمال زیات دی

نوچې اهداف ژرترلاسه کېدونکي ندي خودیمن مسلمان ولس سخت متضرره کېږي دسعودي نه دټولې نړۍ دمسلمانانودزړه غوښتنه داده چې له هرې لارې کېدای شي هم دې دحوثیانودخطر مخه ونیسی اوهم دې دبمبار روانه لړۍ ودروي.

اوس هم لاوخت ندی تېر؛ ښه داده چې سعودي داسلامي نړۍ دمهمو هېوادونوپه ملتیا دستونزې داسې سوله ایزحل راوباسي چې هم پکې دحرمینوشریفینوخوندیتوب یقیني وي اوهم یمن کې یوه سالمه اداره رامنځته اوددې هېوادغریب ولس دیوستریشري ناورین نه وژغورل شي ؛مسلمان مهم هېوادونه دې ددواړوارخونونه ترخپلوحدودود محدودېدلو اوپه یوبل باندې دتجاوزنه کولو تعاهد واخلي او پدې دې دواړه پوه کړي چې جنګ له ځانه سره لوېې بدبختۍ راوړي اودابدبختۍ یواځې ددواړو اړخونوپورې نه وي محدودې بلکې ټولې اسلامي نړۍ ته به خپرېږي چې په جنګ کې داخته کېدوله امله دشام ،عراق اولیبیابدترحالت یې ژوندۍ بېلګې دي .خبره چې دسعودي نه دنړۍ دمسلمانانودګیلوراغله نوپه همدې پلمه دنړۍ دمسلمانانوېوه بله ګیله یادول هم ضروري بولم اوهغه داچې دنړۍ دمسلمانانو په اړه دسعودي دبې التفاتۍ اوبې اعتنایۍ ددریغ سره دمخالفت اوورنه دګیلمنتوب ترځنګ دسعوی نه دنړۍ دژمنو مسلمانانو دنارضایت یوبل لامل هم شته اوهغه داچې پدې هېوادکې چې حجازمقدس داسلام دستړپېغمبرصلی الله علیه وسلم مولد اومسکن دی دوحی دنزول مقام دی داسلامي عقایدواوشرائعو رومبنۍ سرچینه ده نودسعودي ددولت او اوسېدونکو دواړونه دنړۍ دمسلمانانوقلبي غوښتنه داده چې دشریعت رنګ دې دلته په هرڅه غالب وي خو متأسفانه چې ددولت په اداراواودعام ولس په معاملاتواوټولنیزومسائلوکې مذهبي رنګ ډېرپیکه اومغلوب ښکاري .

درحمة للعالمین دذات مبارک سره دایماني اومکاني قرب له امله ددې ځای اوسېدونکي باید په معاملاتو اوټولنیزوچاروکې پاکي اوصداقت خپل شعار وګرځوي؛ دوئ بایدپه نادارواو مسافرو وګړو زړه سوی اوترحم کونکي وي اودلته یوراغلي مسلمان ته هم نه اجنبي وویل شي اونه ورته داجنبي په نظر وکتل شي خودلته دمزدورۍ لپاره دراغلوغریبواو نادارومسلمانانوسره دزیاتروسعودیانو سلوک داسې وي لکه چې بیخي ورته داغریب مسافرمسلمانان انسانان نه ښکاري چې پدې اړه مسلمانان سخت ګیلمن دي .

داهم دمسلمانانو قلبي غوښتنه ده چې په تعلیمي ،سیاسي ، عسکري اواقتصادي ټولوچاروکې دې اسلامي نړۍ ته دنزدیکت اودکفري نړۍ نه په کامل حکمت اوبصیرت دلرېوالي هڅې وشي .

ددې ترځنګ دولت بایدمعروف ته دودې ورکولواودمنکراتود مخنیوي په لارکې ډېرجدي شي دجغرافیایې سرحداتوترځنګ دفکري سرحداتوساتنې ته پاملرنه هم ډېره اړینه ده ؛ داهم ډېره ضروري ده چې خپل ځوانان دغربي بربنډ کلتورپه لوموکې دراګېرېدونه وساتي اوددین په نوم او رنګ کې دهغه غلومخه هم ونیسي کومه غلوچې کم علمه اوکم عمره مسلمانان دخوارجواونوروضاله مضله فرقوفکر؛ داهل السنة والجماعة متفق علیه عقایدونه انکار اودسلفوصالحینوسب اوشتم ته دعوت کوي .

دفکري ارتداد اودغربي کلتوردسیلاب دمخنیوي لپاره باید په ټولې اسلامي نړۍ کې خپل ټول وسایل په پوره اخلاص په کارواچوي ؛ دایې مسئولیت اودامسئولیت اداکول ددې وخت ډېره ستره غوښتنه ده .

دسعودي دځوانانودتعلیم اوروزنې لپاره یواځې دامریکااونورلویدیځ انتخاب اوامریکاته دومره نزدیکت چې اوس خبره دسعودي په سیاسي ،حربي ،اقتصادي اوحتی ټولنیزوچاروکې مداخلې ته رسېدلې رښتیاداده چې دنړۍ مسلمانان یې ډېر تشویش کې اچولي دي .

دسعودي نه دنړۍ دمسلمانانوصمیمانه غوښتنه داده چې دې ټولوخبروته دې په جدي پاملرنې مسلمانان داسې خوشاله کړي لکه چې دحرمینوشریفینواوحجاج کراموپه ښه خدمت اودلته په ډېرعالي نظم یې چې دنړۍ مسلمانان خوشاله کړیدي .

# د اسلامي امارت له خیرخواهۍ او تدبر مالامال موقف

لیکوال: حنیف بدالله

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : الدین النصیحة ... رواه مسلم . دین خیرخواهي ده. درسول الله صلی الله علیه وسلم دا قول خورا پراخه او شامله معنی لري، تر دې چې د نبوي احادیثو مشهور حافظ او عالم محمدبن أسلم الطوسي ویلي چې دې حدیث د دین یوه بشپړه ربع احتوا کړې ده، یعني داچې د مؤمن یوه له سترو وظایفو داده چې د خیرخواهۍ جذبه ولري، ددین خیرخواه واوسي، د ځان خیرغوښتونکی وي، دولاتو او شرعي امیرانو خیرغوښتونکی وي او بالاخره د ټولو مسلمانانو خیرخواه واوسي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم چې د یوه مسلمان لپاره په بل مسلمان شپږ حقوق ثابت بللي یو حق په کې د نصیحت او خیرخواهۍ دی، مسلمانان په خپل منځ کې یو پربل د خیرخواهۍ حق لري، چې هر یو باید دبل خیر غوښتونکی واوسي او د خپل منځي شر له پیښیدو څخه جلوه ګیري وکړي.

په اوس وخت کې د افغانستان په سطحه یوه نوې او حساسه مسئله د جهادي متحد صف اسلامي امارت په وړاندې د عراق او شام د دولت اسلامي تر نامه لاندې د مسلحو کسانو راپاڅیدل دي، چې دافغانستان په ختیځ ولایت ننګرهار کې یې څرګونه لیدل شوې دي.

تر اوسه دانه ده معلومه چې د عراق او شام د اسلامي دولت مشرتابه او په خاص ډول ابوبکر البغدادي تر کومه حده په اورکزو او ننګرهار کې د خلافت د بیرغدارانو له ورځنیو کړنو او جاري فعالیتونو سره توافق لري، خو په دې کې شک نشته چې د عراق او شام دولت همدغه کسان په جنوبي آسیا کې رسما خپل استازي بللي دي او په افغانستان کې یې ورته د فعالیت قومنده ورکړې.

په داسې حال کې چې اسلامي امارت عملا د نړیوال کفر سره په جګړه بوخت دی او د نړۍ د نږدې ۵۰ هیوادونو طاغوتي پوځونه یې له شکست او مختورۍ سره مخامخ کړي دي، په ننګرهار کې د نویو راپاڅیدلو مشبوهو وسلوالو د تعرض په وړاندې اسلامي امارت یوازې د ځاني دفاع دنده ترسره کړې او د پراخ متقابل برید او تصادم په ځای یې اساسي ترکیز د جوړجاړي او تفاهم په هڅو کړی دی، اسلامي امارت دمسلمانانو ترمنځ د وینو تویېدنې د مخنیوي په خاطر له څو میاشتو راهیسې ددې جنجال د خاموشه کولو اصلاحي هڅه کوي، مقابل جانب ته د علماء کرامو، سپین ږیرو او خیرخوا اشخاصو پلاوي لیږي تر څو موجوده نزاع له منځه لاړه شي.

د اسلامي امارت د همدې خیرخواهانه هڅو په لړ کې مې همدا نن په یوه لیک ستر ګې ولګیدې چې داسلامي امارت د مشرتابه شورى لخوا د اسلامي امارت د نائب ملااختر محمد منصور په امضاء د اسلامي دولت مشر ابوبکر بغدادي ته استول شوی دی.

دغه مهم لیک مې تر پایه ولوست چې له محتوی څخه یې داسلامي امارت د متعهدانه، مدبرانه او خیرخواهانه موقف په اړه نور شواهد هم په لاس راغلل.

د هر اسلامي فرد او ډلې ایماني دنده ده چې په هر ډول حالاتو او له هرچا سره په تعامل کې یوازې د اسلامي لارښوونو او قوانینو په مبنا چلند او تعامل وکړي، اسلامي امارت او اسلامي دولت دوه بیلابیلې اسلامي ډلې دي، اسلامي امارت په یاد شوي لیک کې له یوه مسلمان جهت سره د دیني تعامل مسؤلیت په بشپړه توګه ترسره کړی او خپل پیغام یې کټ مټ له شریعت سره موافق د اسلامي دولت په ادرس ابلاغ کړی دی.

الله تعالی د رسول الله صلی الله علیه وسلم او دهغه د ملګرو په اړه فرمایلي : اشداء علی الکفار رحماء بینهم ... د کفارو په وړاندې سخت او د خپلو مسلمانانو په مقابل کې مهربانه یا نرم دي ... اسلامي امارت خپل پیغام د همدې آیت په موافقت په ډېره نرمه ژبه د اسلامي دولت مشرتابه ته وړاندې کړی، خبره یې په مسنون سلام اونیکو هیلو پیل کړې او بیا یې د نړیوال کفر په وړاندې د جهادي صف د متحد ساتلو په اړه له خیرخواهۍ، صمیمیت او دیني اخوت څخه ډکې څرګندونې کړې دي.

د اسلامي امارت مشرتابه په خپل لیک کې د تورو دویستلو او د غشو د تیرولو باتې نه دي ویشتې، ځکه تورې او غشي یوازې د کفارو لپاره دي، بلکې په صمیمانه ژبه او قوي استدلال سره یې دا خبره روښانه کړې، چې همدا اوس د افغان مجاهد ملت او ټول عالم اسلام خیر په دې کې دی، چې په

افغانستان کې د کفري يرغل په وړاندې جهاد د تيرې لسيزې په شان په متحد صف کې جريان پيدا کړي، موجود نظم ګډوډ نه شي، په صف کې انشقاق او تفرق ته اجازه ورنکړل شي، ځکه که دغه متحد صف د نزاع ښکار شي نو ضرور به د نورې نړۍ غوندې دلته هم کفار د جګړې ميدان ګټي، او مسلمانان به يوځل بيا له شکست او فشل سره مخ کيږي، ځکه الله تعالی موږ ته خورا په روښانه ټکو ويلي دي چې : وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ.... الانفال . ژباړه: د الله او دهغه د رسول اطاعت وکړئ او خپل منځي نزاع مه کوئ کنه ختم به شئ او باد به مو ووځي.

د اسلامي امارت د پيغام نهايي او مجموعي مطلب يوازې همدا دی، چې اسلامي دولت دې په افغانستان او نوره نړۍ کې د موجوده بريااليو جهادي صفوفو نظم نه خرابوي او نه دې هم د هغوی تر منځ د خواخوږۍ او وروروليۍ فضاء له منځه وړي، دا چې د افغانستان په سنګر کې ناست مجاهد د عراق له مجاهد سره خواخوږي لري او دعاګانې ورته کوي، او په هر درد يې ځان دردمن بولي دغه د اخوت رشتې دې د جبر، تعرض او غټ بازۍ په قچې نه غوڅوي او نه دې د نړيوال جهاد په صفوفو کې د نزاع فتنې ويښوي، کنه بيا به د درست عالمي جهادي صف زور ختم او صلابت له منځ لاړ شي، کفار به خوشاله او مؤمنين به خسته او شکسته شي او ددې فشل ټوله ګناه به د نزاع کرونکو په غاړه وي.

د نړيوال جهاد مبتکر مغز او د القاعدة تنظيم عبقري شخصيت شيخ أبومصعب السوري فک الله أسره په خپل ارزښتمن کتاب دعوة المقاومة العالمية الاسلامية کې چې کله د عالمي کفر په وړاندې د نړيوال جهاد په مجالاتو بحث کوي، نو د اسلامي نړۍ د هرې جغرافيې حالات او شرايط بيل بيل تعريفوي او د هماغه اولس او هيواد کلتوري، جغرافيوي، اقتصادي او نورو مشخصاتو ته په پام سره د هغوی د حال موافق جهادي برنامه پيشنهاد کوي.

نوموړی په دې نظر دی، چې تپل شويو جغرافيوي حدودو اسلامي اولسونه سره ويشلي او د اسلامي نړۍ د يوې جغرافيې شرايط بلې ته د ځمکې او اسمان هومره فرق کوي، نوځکه لازمه ده، چې د هرې جغرافيې شرايطو ته په پام سره د هغوی دحال موافق جهادي برنامه په مخ يووړل شي، نړيوال جهاد يا د کفر په وړاندې نړيوال اسلامي مقاومت بايد په بيلابيلو جبهاتو کې، له بيلابيلو مؤثرو برنامو سره خو د يوه مشترک هدف لپاره ادامه پيدا کړي چې هغه اسلامي امت ته اسلامي نظام او تير برم راستنول دي.

د نړيوال جهاد په اړه د شيخ أبومصعب السوري دکتورين ته په پام سره د افغانستان د حال او شرايطو موافق تر ټولو مؤثر او پاييدونکی جهادي صف يوازې د افغانستان اسلامي امارت دی، چې په تيرو دوو لسيزو کې يې د نظام جوړونې، جهاد او يرغل شنډولو په بيلابيلو مواقعو کې امتحان ورکړی، په يادو ټولو ازموينو کې کامياب ثابت شوی، د خپل مسلمان اولس زړه او اخلاص يې له ځان سره ساتلی، د نړۍ له مسلمانانو او جهادي حرکاتو سره يې هميشه د خواخوږۍ او اخوت اسلامي تعامل پاللی، نه يوازې يې د خپلې مربوطه جغرافيې اوسيدونکي مسلمانان د کفر له فکري، پوځي او سياسي اشغال څخه ساتلي بلکې د نړۍ له لراوبر څخه يې زرګونو مستضعفو مسلمانانو ته په خپله پراخه غيږ کې د خوندي اوسيدو زمينه برابره کړې ده.

اسلامي امارت او هر د عقل او شعور څښتن په دې پوهيږي، چې د افغانستان په شرايطو او دلته د جهاد د بريا په رازونو له ابوبکر بغدادي څخه ملامحمد عمر مجاهد ښه علم لري، د اور کزو د ټوپکوالو په نسبت د امارت طالبان د افغانستان په خلکو او اولس کې ژور نفوذ او محبوبيت لري، د افغانستان په کليو او ښارونو کې ښه بلد دي، د افغانستان اشغالوونکي يرغلګر او د هغوی محلي ملاتړي، منافقين او مرتدين ښه پيژني او له هغوی سره د مقابلې شل کلنه تجربه لري، اسلامي امارت له کفر څخه د افغانستان د ازادۍ لپاره اړين علم، قوت، بشري ځواک، تجربه، نظامي لرليد او ټول څه له ځان سره لري او ان شاءالله د الله تعالی په کومک له دې عهدې په کاميابۍ سره وتلی شي.

دې ته په پام سره هيڅ اړتيا نشته چې دلته د جهاد په نامه يو بل داسې موازي صف پرانيستل شي، چې يوازې د مسلمانانو تر منځ د خپل منځي نزاع او بالاخره عمومي فشل او ناکامۍ سبب ګرځي . لا قدر الله

د اسلامي دولت په ادرس ليږل شول د اسلامي امارت پيغام په بشپړه توګه له ديني خواخوږۍ، خيرخواهۍ او تدبر څخه مالامال دی، د اسلامي دولت مشرتابه او محلي ملاتړي بايد دغه پيغام په عميق نظر مطالعه کړي، اسلامي دولت او اسلامي تر خپل منځ په يوه بل د خيرخواهۍ حق لري، اسلامي امارت خپل د خيرخواهۍ پيغام او نيکه مشوره اسلامي دولت ته وړاندې کړه اوس په اسلامي دولت او ملاتړو يې ده چې خپل د مسلمانۍ ثبوت وړاندې کړي هغه دا چې د اسلامي امارت خيروغواړي، د قوت او لا مضبوطتيا لپاره يې لاس په کار شي او دلته د جهادي نظم د تخريب په ځای په کومه بله جغرافيه کې جهادي بهير راژوندی کړي.

# د امام ترمذی (رح) ژوند ته لنډه کتنه

(سید سعید)

ابو عیسی محمد بن عیسی بن سوره بن موسی بن الضحاک الترمذي په ۲۰۹ هق کال د ترمذ په ښار کې دنیا ته سترګې پرانستلې دي، ترمذ د جیحون پرشمالي غاړه داوسني ازبکستان په جغرافیایي پولو کې موقعت لري. امام ترمذي په ماشومتوب کې په خپل ښار کې د معاصرو علماء کرامو څخه علمي استفاده وکړه او وروسته یې د علم د حصول په موخه عراق، حجاز او خراسان ته سفرونه وکړل.

امام ترمذي (رح) نومیالی محدث، تکړه حافظ او وتلی فقهي ؤ، کومو کسانو چې د امام ترمذي اثار په تېره سنن ترمذي مطالعه کړې وي هرو مرو به د ابوعیسی ترمذي علمیت او فقاهت ورته څرګند شوی وي. د امام بخاري (رح) تر وفات وروسته ترمذي (رح) د هغه ځای ناستی شو، مشهوره ده چې امام بخاري د ابوعیسی ترمذي په شان بل لوی عالم، محدث او زاهد خلف نه دی پرې ایښی. امام بخاري (رح) ترمذي (رح) ته یې وویل چې «ماانتفعت بک اکثر ممأانتفعت بي» ماچې څومره استفاده ستا څخه کړې ده ترهغې ګټې ډېره ده چې تازما څخه ترلاسه کړې ده. که څه هم ترمذي د امام بخاري شاګرد ؤ، خو بخاري (رح) و نوموړي ته زیات عقیدت درلود.

## دامام ترمذي استادان:

امام ترمذي (رح) د بخاري، مسلم او ابو داود (رحمهم الله) شاګرد پاته شوی دی، خو دنوموړو له ځینو استادانو څخه یې هم د احادیثو سماع کړې ده، دنوموړي مشهور استادان په لاندې ډول دي.

۱. امام محمد بن اسماعیل بخاري

۲. امام مسلم بن حجاج نیشاپوري

۳. امام ابوداود سجستاني

۴. امام اسحاق بن راهویه

۵. قتیبه بن سعید

۶. محمد بن بشار

۷. علی بن حجر

۸. سوید بن نصر

۹. ابو مصعب احمد بن ابي بکرزهري

۱۰. اسماعیل بن موسی فزاري

## د ترمذي شاګردان:

امام ترمذي د تکړه محدثینو او حفاظو څخه ؤ، د نوموړي څخه ډېرو خلګو علمي استفاده کړې ده، د څو مشهورو شاګردانو نومونه یې دي.

۱. حسین بن یوسف فربري

۲. هیثم بن کلیب شاشي

۳. ابو العباس محمد بن احمد محبوبي

۴. مکحول بن فضل نسفي

۵-ابو جعفر محمد بن احمد نسفي

۶-حماد بن شاکر ......

## د ترمذي تاليفات :

ابو عيسي ترمذي د احاديثو په علم کي ډير اثار ليکلي دي، خو ترټولو مشهور او معتبر کتاب يې جامع يا سنن ترمذي دی.

۱-کتاب العلل

۲-کتاب التاريخ

۳-کتاب الشمائل

۴-کتاب الزهد

۵-کتاب الأسماء والکنی.

جامع يا سنن ترمذي د احاديثو په کتابونو کي يو معتبره کتاب ګڼل کيږي، امام ترمذي چي کله همدغه کتاب تاليف کړ په حجاز، عراق او خراسان کي يې نوميالیو علماوو ته وړاندي کړ، هغوی په اتفاق سره جامع ترمذي خوښ کړ او داسي وويل چي: « په کوم کور کي چي( سنن ترمذي) موجود وي لکه په هماغه ځای کي چي انحضرت صلی الله عليه وسلم مجلس کوي » .

امام ترمذي په خپل مشهور تاليف (جامع ترمذي) کي يوازي صحيح احاديث نه دي ذکر کړي، بلکي صحيح، حسن، ضعيف او غريب احاديث يې هم را نقل کړي دي او همدا راز يې معلل روايات د هغوی دعلتونو د توضيح سره را جمع کړي دي.

امام ترمذي په سنن ترمذي کي د فقهاوو مذهبونه او د هغوی د استدلالونو وجهي ذکر کړي دي چي همدغه خصوصيت دصحاح الستة په نورو کتابونو کي نه تر سترګو کيږي.

د ترمذي شريف په لوستلو سره سړی د فقهي سره هم په نسبي ډول اشنا کيږي، ځکه ترمذي چي کوم حديث ذکر کوي په زياتره مواردو کي يې فقهي حکم هم ورسره وړاندي کوي، همدا راز د سندونو سره څنګ کي د هغو صحابه کرامو تذکره هم ذکر کوي چي د احاديثو روايت يې کړي وي.

## د جامع يا سنن ترمذي شرحي :

پر سنن ترمذي باندي لويو لويو علماوو شرحي ليکلي دي، د ځينو مشهورو شرحو نومونه يې دي:

عارضة احوذي في شرح سنن الترمذي، د ابوبکر ابن عربي تاليف دی.

قوت المغتذي علی جامع الترمذي، د جلال الدين سيوطي تاليف دی.

تحفة الاحوذي شرح جامع الترمذي، د علامه عبدالحمن مبارکپوري تاليف دی.

معارف سنن شرح جامع الترمذي دعلامه يوسف بنوري تاليف دی.

درس ترمذي – چي په پښتو ژبه هم ترجمه شوی - دعلامه تقي عثماني تاليف دی.

## د امام ترمذي وفات :

نامتو محدث او فقهي امام ابو عيسی الترمذي (رحمه الله ) د ۲۷۹هق کال د رجب په ۱۳ مه نيته په داسي حالت کي چي د سترګو ليد يې ختم شوی ؤ د اويا کلونو په عمر د ترمذ په ښار کي له دې فاني کورګي څخه و دارالبقاء ته رحلت وکړ. انا لله وانا اليه راجعون !

مأخذونه: ويکيپيډيا الموسوعة الحرة

بيداری اسلامي

# د لومړۍ او دویمې نړیوالې جګړې

## په اړه په زړه پورې معلومات

عطا محمد میاخیل

ـ د لومړۍ نړیوالې جګړې پرمهال د جرمني ولسمشر وان پیډن برګ وو .

ـ په لومړۍ نړیواله جګړه کې د ۱۹۱۴ زیږدیز کال د اګست په میاشت کې جرمني پر فرانسې باندې د برید اعلان وکړ .

ـ کله چې لومړۍ نړیواله جګړه پیل شوه، په هغه وخت کې د برتانیې لومړی وزیر ایچ ایچ اسکویته و .

ـ په لومړۍ نړیواله جګړه کې د ۱۹۱۴ زیږدیز کال د اګست په میاشت کې جاپان د جرمني په وړاندې د جګړې اعلان وکړ .

ـ په لومړۍ نړیواله جګړه کې تر ټولو زیاته مرګ، ژوبله جرمني هېواد ته ور واوښته، ځکه چې په یاده جګړه کې اولس لکه و دري اویا زره جرمنیان ووژل شول او دوه ځلویښت لکه و شپاړس زره جرمنیان ټپیان شول .

ـ په دویمه درجه کې روسیه قرار لري، چې اولس لکه روسان مړه او نهه لکه و پنځوس زره روسان ټپیان شول .

ـ درییمه درجه هېواد فرانسه دی، چې په یاده جګړه کې دیارلس لکه و اویا زره کسان مړه او ځلویښت لکه و شپږ شپېته زره تنه ټپیان شول .

ـ په لومړۍ نړیواله جګړه کې نهه لکه و اته زره و درې سوه بریتانویان مړه او شل لکه و نوي زره و درې سوه ټپیان شول .

ـ په لومړۍ نړیواله جګړه کې درې سوه (۳۰۰) جاپانیان مړه او نهه سوه و اوه (۹۰۷) کسان ټپیان شول .

ـ په لومړۍ نړیواله جګړه کې پنځلس هېوادونو ګډون درلود .

ـ دویمه نړیواله جګړه د ۱۹۳۹ زیږدیز کال د سپټمبر په لومړۍ نېټه پیل شوه .

ـ په دویمه نړیواله جګړه کې، کومه هوایي جګړه، چې د جرمني او بریتانیې هېوادونو ترمنځ را منځته شوه د جرمني اوه سوه و درې دېرش (۷۳۳) او د بریتانیې نهه سوه و پنځلس (۹۱۵) الوتکې له منځه لاړې .

ـ د دویمې نړیوالې جګړې پرمهال د جرمني ولسمشر ادولف هټلر و .

ـ په دویمه نړیواله جګړه کې د ۱۹۴۱ زیږدیز کال د دسمبر په میاشت کې روسیې پر فلیپین برید وکړ .

ـ د دویمې نړیوالې جګړې پرمهال د ۱۹۴۱ زیږدیز کال د دسمبر په میاشت کې هټلر د یهودانو د عام وژنې حکم صادر کړ .

ـ د دویمې نړیوالې جګړې پر مهال د ۱۹۴۱ زیږدیز کال د دسمبر په اتمه نېټه امریکا د جرمنې په وړاندې د جګړې اعلان وکړ .

ـــ د دویمـې نړیـوالې جګـړې سـتره سـمندري جګـړه د Battle of Midwayپه نامه يادېږي .

ـ هټلر په ۱۹۴۵ زیږدیز کال کې ځان وژنه وکړه .

ـ د دویمې نړیوالې جګړې پر مهال د ۱۹۴۵ زیږدیز کال د سهار په اتو بجو د امریکا له لوري د جاپان د هیروشیما پـه ښـار بانـدې اتـوم بـم وغورځـول شـو او دا حکـم د هیـري ترومین له خوا ور کړل شوی و .

ـ د جاپان په هیروشیما باندې B-۲۹ډوله الوتکې اتوم بـم وغورځاوه .

ـ په هیروشیما بانـدې د اتـوم غورځولـو لـه املـه دوه لکـه و څلوېښت زره کسان، چې له دې ډلې څخه یو لک و اویـازره عام وګړي او، اویا زره عسکر وو وژل شو .

ـ د دویمې نړیوالې جګړې پر مهال د دان پولس په نامه یـو جرمني جنرال له خپلـو نـوي زره عسـکرو سـره روسـیې تـه تسلیم شو .

ـ د دویمې نړیوالې جګړې پر مهال تر ټولو وروسـتی هېـواد جاپان و، چې تسلیم شو .

ـ په دویمه نړیواله جګړه کې تر ټولو زیات روسان له منځ تللي دي، چې د مړو شمېر یې یو شپېته لکه و پنځلس زره او د ټپیانو شمېر یې یو ملیارد و دولس زره تنو ته رسېده .

ـ پـه دویمـه نړیوالـه جګـړه کې تـر ټولـو کمـه مـرګ ژوبـه برازیل هېواد ته ور اوښتي وه، چې مړو شمېر یې نهه سوه و څلوېښت تنـه او د ټپیـانو شـمېر یـې څلـور زره و دوه سـوه و شلو تنو ته رسېده

# روژه لوی فرصت دی!

د کال په اوږدو کې داسې یو میاشت هم شته چې له پیل کېدو سره یې سم د الله تعالی پر لپسې رحمتونه پر انسانانو نازلیږي، د توبې ښه مهلت پیدا کیږي، د جنـت دروازې خلاصې او د دوزخ دروازې پکـې بنـدیږي، دا میاشـت د روژې مبار که میاشت ده چې پـه دې میاشـت کې الله تعالی خپـل پـاک کلام پر خپـل محبوب نبي نازل کړی. پـه دې مبار که میاشـت کې الله سبحانه و تعالی خپلو بندګانو تـه د نیکو اعمـالو توفیـق نصیبوي، روژه لرونکی لـه بـدو کـارونو منع او پکې د کال مودې ټول ګناهونه بخښي.

د روژې مبار کـه میاشـت د اسـلام پـه مقـدس دیـن کې یـو معظمـه او بـا بر کتـه میاشت ده.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ (البقرة / ۱۸۳)

ژباړه : ای مؤمنانو! پر تاسو روژه فرض کړی شوې ده لکه څنګه چې لـه تاسو پر پخوانیو خلکو فرض کړ ای شوې وه.

شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ هُدًى لِلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِنَ الْهُدَى وَالْفُرْقَانِ (البقرة / ۱۸۵)

ژباړه : روژه هغـه میاشـت ده چې قـرآن پـه کې نازل شوی دی، چې د خلکو لپـاره هدایت دی او د هدایت لپاره روښانه دلایل او د حق او باطل تر منځ بېلوونکې ده.

په بل ایت کې الله تعالی وایي : إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ. وَمَا أَدْرَاكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ. لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ. تَنَزَّلُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِمْ مِنْ كُلِّ أَمْرٍ. سَلَامٌ هِيَ حَتَّى مَطْلَعِ الْفَجْرِ (القدر)

ژباړه: مونږ دا (قران) د قدر په شپه نازل کړی دی. او ته څه پوهېږې چې د قدر شپه څه ده؟ د قدر شپه له زرو میاشتو څخه ډېره غوره ده. پر ښتې او روح پکې د خپـل رب پـه اجازه هر حکم اخلي او راکوزېږي. هغـه شپه لـه پیلـه تـر پایـه سلامتیا ده تر سهار لمر ختلو پورې.

په احادیثو مبار کو کې هم د روژې د میاشتې فضیلت په اړه ډېر احادیث روایت شوي چې د نمونې په شکل یې څو حدیثو مبار کو باندې بسیا کوم.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : أَتَاكُمْ رَمَضَانُ شَهْرٌ مُبَارَكٌ فَرَضَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَيْكُمْ صِيَامَهُ، تُفْتَحُ فِيهِ أَبْوَابُ السَّمَاءِ، وَتُغْلَقُ فِيهِ أَبْوَابُ الْجَحِيمِ، وَتُغَلُّ فِيهِ مَرَدَةُ الشَّيَاطِينِ، لِلَّهِ فِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ (رواه النسائي (۲۱۰٦) وأحمد (۸۷٦۹)

ژباړه: پر تاسو د روژې مبار که میاشت راغله چې الله تعالی د دغه میاشتې روژه پر تاسې فرض کړې ده، په دغه میاشت کې د جنت دروازې پر انیستل کیږي، د دوزخ دروازې بندیږي ، په دې میاشت کې شیطانان تړل کیږي، په دې میاشت الله جل جلاله لره یوه غوره شپه ده (لیلة القدر) چې پـه دې شپه کې عبادت کول له زرو میاشتو غوره دی.

# اړوې پردې

استاذ فضل ولي ناگار

څه مې شک ګنې د مینې ننګ ونام کې
زه چې خپلې وینې څکم د اختر جام کې

د حرم طواف شو پاتې، خیاله خیر دی
شه شفق د (تورې بورې) په احرام کې

وچکالۍ ځپلې للمې دي بې کښته
عاطفې لړه راشنه شه! زما قام کې

کاروانونه دې د زړونو بدرګه دي
ترنم د ناز میلمه ساته خرام کې

دشيبو بهير دې رنګ له دمه اخلي
پردې اړوه په ګوتو د خیام کې

هر ارمان اور اورکۍ غوندې خورور لاړ
مینې کور ته رسوایي راوړه ماښام کې

په موسکا خړوبوه تږلي زړونه
څوک مرغه له ولږې نه وژني په دام کې

د سپوږمۍ غوندې په لورو خاته عیب دی
زمونږ پیغلې کشمالي کړي په بام کې

زما هیلو پرې د زانو کتار جوړ کړ
بغدادۍ کوترې یې ولیدې باګرام کې

ناګار نشو ورته تیښتې، ښکلو خوښ نه کړ
چینارونه پیوند نه اخلي بادام کې

# Shahamat

شهامت

بربادېږي مسلمانان !!

نهم کال لومړۍ گڼه، پرلپسې ۵۱ مه، شعبان ۱۴۳۶ هـ ق، جون ۲۰۱۵ م

داسلامي امارت نوې سیاسي او پوځي لاسته راوړنې...
د اسلامي امارت له خیرخواهی او تدبر ډالا مال موقف...

عزم، د اسلامي امارت د پوځي اوسیاسي بریا شانداره مظهر!
د ترکیبي راتلونکی حکومت، ننگونې او احتمالات

د شهید مولوي نسیم الله صدیقي ژوند ته کتنه
ازماهی رحمت چگونه استقبال میگرد

د بغلان والي ملا محمد اسمعیل: عزم عملیاتو په بغلان کې انقلاب راووست

